# بین المللي سیاست

## ته یوه کتنه

لیکوالان

جان رورکي

مارک بویر

ژباړه او لنډیز

ډاکتر محمد صدیق ظهیر

بسم الله الرحمن الرحیم



* **بین المللي سیاست ته یوه کتنه**
* لیکوالان: جان رورکي او مارک بویر
* ژباړه او لنډیز: ډاکټر محمدصدیق ظهیر

* خپروونکی: **علامه رشاد خپرندویه ټولنه**
* کندهار – افغانستان
* تلیفون: ۰۷۰۰۳۲۶۰۱۱
* **ایمیل:** mrohyal@yahoo.com

* کمپوز او ډیزاین: **روهیال نشراتي مؤسسه**
* کچه: ۱۳/۵۰ × ۲۱ سانتي متره
* لومړی چاپ: ۱۳۹۰ ش
* چاپ شمېر: زره ټوکه
* د مخونو شمېر: ۲۴۸
* د خپرونو لړ: ۴۹

# د خپروونکي خبري

په پښتو ژبه کي د سياسي علومو او علمي سياست پوهني په اړه د علمي کتابونو تشه له ډېره وخته موجوده ده، د دي تشي ډکول او پوره کول د ټولو پښتنو ليکوالو او څېړونکو دنده ده. له نېکه مرغه زموږ د تکړه ليکوال او خوږ ژبي مترجم ډاکټر محمدصديق ظهير دغي خلا ته له وخته پام سوی دئ، او په دې برخه کي ئې دا دوهم ترجمه کړی اثر دئ چي د سياست مينانو ته ئې وړاندي کوي.

د دوی مخکنۍ ترجمه (پوليټيکل ساينس ته يوه کتنه) په لومړي ځل په کال ۱۳۸۷ش خپره سوه، چي د علاقمندانو د خوښۍ وړ وګرځېده او د شايقينو د زياتو غوښتنو په سبب په ۱۳۸۸ش کال کي د دوهم ځل له پاره چاپ او خپره سوه. د ښاغلي ډاکټر ظهير صاحب مخکنۍ او دغه دواړي ترجمې په عمومي ډول د سياست پوهني د اصولو او نورمونو سره لوستونکي آشنا کوي، او په دې برخه کي سياست د يوه علم په توګه راپېژني. د دغو دواړو ترجمو څخه پر عامو خلکو سربېره د پوهنتونونو محصلين هم ښه استفاده کولای سي، په ځانګړې توګه د سياسي علومو د پوهنځي محصلينو ته ئې مطالعه کول يو مبرم ضرورت دئ.

موږ په خپل وار ښاغلي ظهير صاحب ته د دغه پرمحتوی اثر مبارکي ورکوو، او د لويه خدايه دوی ته د اوږده، سوکاله او نېکمرغه ژوند غوښتنه کوو.

مطيع الله روهيال

د علامه رشاد خپرندويه ټولني مشر

# فهرست


۱. یادونه........ ۱۴
۲. یو څو خبري........ ۱۶


## لومړی فصل


۳. نړیوال سیاست په پام کي نیول او د هغه په هکله فکر کول ........ ۲۰
۴. زموږ له پاره د نړیوال سیاست اهمیت ........ ۲۱
۵. مستقیم عمل کول ........ ۲۳
۶. رایي ورکول ........ ۲۳
۷. پالیسي جوړوونکي کېدل ........ ۲۴
۸. تیوریکي فکر کول: پېښي په متن کي مطالعه کول ........ ۲۵
۹. ریالیستي تیوري........ ۲۷
۱۰. لیبرال تیوري ........ ۲۷


## دوهم فصل


۱۱. د نړیوال سیاست تکامل........ ۲۹
۱۲. تکامل کوونکی نړیوال سیستم – لومړنی انکشاف........ ۲۹
۱۳. لرغونی یونان او روم........ ۳۰
۱۴. قلمروي دولت ........ ۳۰
۱۵. حاکمیت........ ۳۱
۱۶. نېشنلیزم ........ ۳۱
۱۷. ډیموکراسي ........ ۳۲
۱۸. د روم تر سقوط وروسته ........ ۳۲

۱۹. په منځنيو پېړيو کې جهان شموله واک (قدرت) ........ ۳۳
۲۰. مذهبي واک ........ ۳۳
۲۱. غير مذهبي واک ........ ۳۴
۲۲. په منځنيو پېړيو کې سيمه ييز قدرت ........ ۳۴
۲۳. د فيوډالي سيستم زوال ........ ۳۵
۲۴. نظامي تکنالوجي ........ ۳۵
۲۵. اقتصادي پراختيا ........ ۳۶
۲۶. د جهان شموله قدرت زوال ........ ۳۷
۲۷. د نړيوال سيستم ظهور – شلمه پېړۍ ........ ۳۸
۲۸. د دوه قطبي سيستم صعود او نزول ........ ۳۹
۲۹. د دوه قطبي سيستم پای ........ ۴۱
۳۰. په شلمه پېړۍ کې د امنيت مسئله ........ ۴۳
۳۱. په يوويشتمه پېړۍ کې جهاني اقتصاد ........ ۴۴
۳۲. اقتصادي وابسته ګي ........ ۴۴
۳۳. د شمال او جنوب تر منځ اقتصادي نابرابري ........ ۴۵
۳۴. په يوويشتمه پېړۍ کې بشري حقوق ........ ۴۷


## دريم فصل


۳۵. خارجي پاليسی او د هغه تحليل ........ ۴۸
۳۶. له فردي زاوئې څخه تحليل ........ ۴۹
۳۷. انسان د يو نوع په توګه ........ ۴۹
۳۸. ادراکي فکتورونه ........ ۵۰
۳۹. د ادراکي تداوم لټول ........ ۵۱
۴۰. غيرعملي هيله درلودل [خيال پلو] ........ ۵۱
۴۱. احساساتي فکتورونه ........ ۵۲
۴۲. جنسيت ........ ۵۳
۴۳. سازماني سلوک ........ ۵۵
۴۴. د رول سلوک ........ ۵۵

۴۵. په سازمانونو کي دننه د تصميم نيولو سلوک ........ ۵۷
۴۶. ليډران او د دوی انفرادي ځانګړي مشخصات ........ ۵۸
۴۷. شخصيت ........ ۵۹
۴۸. جسماني او دماغي روغتيا ........ ٦۰
۴۹. خودخواهي او جاه طلبي ........ ٦۱
۵۰. سياسي سابقه او شخصي تجربې ........ ٦۲
۵۱. د دولت په سطحه کي (د دولتي زاوئې څخه) د پاليسۍ تحليل ........ ٦۳
۵۲. د حکومت ډول (نوعيت) او د خارجي پاليسۍ پروسه ........ ٦۳
۵۳. د حالت ډول (نوعيت) او د خارجي پاليسۍ پروسه ........ ٦۴
۵۴. د پاليسۍ ډول (نوعيت) او د خارجي پاليسۍ پروسه ........ ٦۵
۵۵. د خارجي پاليسۍ جوړول: سياسي کلتور ........ ٦٦
۵٦. خارجي پاليسي جوړوونکي اکټران ........ ٦۸
۵۷. د سيسټم په سطحه کي د پاليسۍ تحليل ........ ٦۸
۵۸. ساختماني [ساختاري] مشخصات ........ ٦۹
۵۹. اقتصادي واقعيتونه ........ ۷۱

## څلرم فصل

٦۰. د ملت، نېشنليزم او يو ملتي دولت پېژندنه ........ ۷۴
٦۱. د ملت، نېشنليزم او ملتي دولت تعريفونه ........ ۷۴
٦۲. ملتونه ........ ۷۴
٦۳. ډيموګرافيک او کلتوري مشابهتونه ........ ۷۵
٦۴. ګډ ټولنيز احساس ........ ۷۵
٦۵. د سياسي جلاوالي غوښتنه درلودل ........ ۷٦
٦٦. نېشنليزم ........ ۷٦
٦۷. يو ملتي دولتونه ........ ۷۷
٦۸. د نېشنليزم پاڅون او مخ پر لوړتوب (صعود) ........ ۷۸
٦۹. لرغونی نېشنليزم ........ ۷۹
۷۰. د موډرن نېشنليزم مخ پر لوړتوب (صعود) ........ ۷۹

۷۱. د یو ملتي دولت د تشکیل موډلونه ........................ ۸۱
۷۲. ملت او نېشنلیزم تر یو ملتي دولت وړاندي ........................ ۸۱
۷۳. یو ملتي دولت تر ملت او نېشنلیزم وړاندي ........................ ۸۱
۷۴. ملت، نېشنلیزم او یو ملتي دولت یو ځای منځته راځي ........................ ۸۲
۷۵. نېشنلیزم په عمل کي ........................ ۸۳
۷۶. د یو ملتي دولت تخیل myth او واقعیت ........................ ۸۳
۷۷. یو ملت، یو دولت ........................ ۸۴
۷۸. یو دولت، څو ملتونه ........................ ۸۴
۷۹. یو ملت، څو دولتونه ........................ ۸٦
۸۰. بې دولته ملت ........................ ۸۷
۸۱. څو ملته، څو دولته ........................ ۸۷
۸۲. د نېشنلیزم مثبت او منفي اړخونه ........................ ۸۹
۸۳. مثبت نېشنلیزم ........................ ۸۹
۸۴. نېشنلیزم ډیموکراسي پر مخ بیایي ........................ ۸۹
۸۵. نېشنلیزم د امپریالیزم مخه نیسي ........................ ۹۰
۸٦. نېشنلیزم اقتصادي پر مختګ ته لاره خلاصوي ........................ ۹۰
۸۷. منفي نېشنلیزم ........................ ۹۱
۸۸. له نورو سره د مرستي کولو بې علاقه ګي ........................ ۹۲
۸۹. د نورو ردول ........................ ۹۳
۹۰. ځان بې ساري بلل او له پردیو څخه بېره (بېګانه هراسي) ........................ ۹۴
۹۱. کلتوري تبعیض او ظلم ........................ ۹۴
۹۲. خودمختاري ........................ ۹۵
۹۳. د خودمختارۍ مثبت اړخونه ........................ ۹۵
۹۴. د خودمختارۍ په هکله اندېښني ........................ ۹٦
۹۵. نېشنلیزم او د هغه راتلونکې ........................ ۹۹
۹٦. د نېشنلیزم د له منځه تلو اټکل ........................ ۹۹
۹۷. د نېشنلیزم سرسخته پایښت ........................ ۱۰۰

# پنځم فصل


۹۸. ګلوبالیزم ........ ۱۰۲
۹۹. ګلوبلایزېشن ........ ۱۰۳
۱۰۰. د ګلوبلایزېشن د چټک پرمختګ فکتورونه ........ ۱۰۴
۱۰۱. د ټرانسپورټېشن او کمیونیکېشن ګلوبلایزېشن ........ ۱۰۶
۱۰۲. نړیوال ټرانسپورټېشن [حمل و نقل] ........ ۱۰۶
۱۰۳. نړیوال کمیونیکېشن ........ ۱۰۷
۱۰۴. اقتصادي ګلوبلایزېشن ........ ۱۰۸
۱۰۵. کلتوري ګلوبلایزېشن ........ ۱۰۹
۱۰۶. ژبه ........ ۱۱۰
۱۰۷. استهلاکي تولیدات ........ ۱۱۱
۱۰۸. د اقتصادي ګلوبلایزېشن په باب اندېښنې ........ ۱۱۲
۱۰۹. د کلتوري ګلوبلایزېشن په باب اندېښنې ........ ۱۱۴
۱۱۰. ترانسنېشنلیزم (مافوق ملتیت) ........ ۱۱۵
۱۱۱. ترانسنېشنلیستي سازمانونه ........ ۱۱۶
۱۱۲. د NGO ګانو انکشاف ........ ۱۱۷
۱۱۳. د NGO ګانو فعالیتونه ........ ۱۱۷
۱۱۴. د NGO ګانو تأثیر ........ ۱۱۸
۱۱۵. منطقوي ټرانسنېشنلیزم ........ ۱۱۹
۱۱۶. کلتوري ټرانسنېشنلیزم ........ ۱۲۰
۱۱۷. ترانسنېشنل مذهب ........ ۱۲۲
۱۱۸. مذهب او نړیوال سیاست ........ ۱۲۳
۱۱۹. د مذهبي بنسټپالنې قوت ........ ۱۲۳
۱۲۰. اسلام او نړۍ ........ ۱۲۵
۱۲۱. اسلام او نېشنلیزم ........ ۱۲۵
۱۲۲. اسلام او غیر اسلامي نړۍ ........ ۱۲۶
۱۲۳. د ټرانسنېشنلیزم راتلونکې به څه وي؟ ........ ۱۲۸

# ۹
# شپږم فصل


۱۲۴. قدرت، دولتداري او ملي دولت ........................ ۱۲۹
۱۲۵. عنعنوي ساختمان ........................ ۱۲۹
۱۲۶. د دولت تعریف........................ ۱۳۰
۱۲۷. حاکمیت........................ ۱۳۰
۱۲۸. قلمرو........................ ۱۳۲
۱۲۹. نفوس ........................ ۱۳۲
۱۳۰. په رسمیت پېژندنه........................ ۱۳۳
۱۳۱. داخلي سازمان او اداره........................ ۱۳۶
۱۳۲. داخلي ملاتړ........................ ۱۳۷
۱۳۳. د دولت هدف ........................ ۱۳۷
۱۳۴. دولتونه څرنګه اداره کېږي؟........................ ۱۳۹
۱۳۵. استبدادي حکومت ........................ ۱۳۹
۱۳۶. ډیموکراټیک حکومت........................ ۱۴۲
۱۳۷. ډیموکراسي او امنیت........................ ۱۴۳
۱۳۸. د قدرت پرله پېچلې ماهیت........................ ۱۴۴
۱۳۹. مطلق او نسبي قدرت........................ ۱۴۵
۱۴۰. د قدرت توان او د قدرت اراده ........................ ۱۴۶
۱۴۱. د قدرت ډاینامک [محرکه قوه]........................ ۱۴۷
۱۴۲. ډیپلوماټیک وسایل ........................ ۱۴۸
۱۴۳. ډیپلوماسي د قدرت د اعمال په توګه ........................ ۱۴۹
۱۴۴. څو اړخیزه ډیپلوماسي ........................ ۱۵۰
۱۴۵. د لیډر او لیډر تر منځ ډیپلوماسي........................ ۱۵۱
۱۴۶. ډیموکراټیکه ډیپلوماسي ........................ ۱۵۲
۱۴۷. خلاصه [پرانستې] ډیپلوماسي........................ ۱۵۳
۱۴۸. د ډیپلوماسۍ سر ته رسول........................ ۱۵۴
۱۴۹. مستقیم یا غیر مستقیم مذاکرات ........................ ۱۵۴
۱۵۰. لوړ رتبه یا کښته رتبه ډیپلوماسي ........................ ۱۵۵

۱۵۱. د تهدید یا بخشش [عوض] څخه کار اخیستل ............ ۱۵۶
۱۵۲. صراحت او یا قصداً مبهم والی ............ ۱۵۷
۱۵۳. د وینا او یا د عمل له لاري کمیونیکېشن ............ ۱۵۷

## اووم فصل

۱۵۴. بین الدولتي سازمانونه ............ ۱۵۹
۱۵۵. بین الدولتي سازمانو ته یوه لنډه کتنه............ ۱۵۹
۱۵۶. د بین الدولتي سازمانو وده او انکشاف ............ ۱۶۰
۱۵۷. د بین الدولتي سازمانو د انکشاف عوامل ............ ۱۶۲
۱۵۸. د بین الدولتي سازمانو رول ............ ۱۶۴
۱۵۹. د متقابل عمل میدان [زمینه] ............ ۱۶۴
۱۶۰. د همکارۍ مرکز ............ ۱۶۶
۱۶۱. ماورای ملتي سازمان ............ ۱۶۶
۱۶۲. جهاني بین الدولتي سازمانونه ............ ۱۶۷
۱۶۳. ملګري ملتونه ............ ۱۶۷
۱۶۴. غړیتوب او رایه ورکول............ ۱۶۸
۱۶۵. د غړیتوب عمومي مسایل............ ۱۶۸
۱۶۶. د بین الدولتي سازمان په ساختار کي دننه د غړیتوب مسایل ..... ۱۶۹
۱۶۷. د امنیت شورا د غړیتوب پر سر مناقشه ............ ۱۷۰
۱۶۸. لیډرشیپ............ ۱۷۲
۱۶۹. د ملګرو ملتو د عمومي منشي ټاکل ............ ۱۷۲
۱۷۰. د ملګرو ملتو اوسنی عمومي منشي ............ ۱۷۳
۱۷۱. اداري او مالي چاري ............ ۱۷۴
۱۷۲. اداره............ ۱۷۴
۱۷۳. اداري ریفورم............ ۱۷۵
۱۷۴. مالي چاري ............ ۱۷۵
۱۷۵. د ملګرو ملتو او نورو بین الدولتي سازمانو فعالیتونه ............ ۱۷۷
۱۷۶. د سولي او امنیت د پرمخ بېولو فعالیتونه............ ۱۷۷

۱۷۷. د تشدد په مقابل کي د معيارونو منځته راوړل ........ ۱۷۸
۱۷۸. ډيپلوماټيکي مداخله ........ ۱۷۸
۱۷۹. د وسلو کنټرول ........ ۱۷۹
۱۸۰. تعزيرات ........ ۱۷۹
۱۸۱. سوله ساتنه ........ ۱۷۹
۱۸۲. اجتماعي، اقتصادي، محيطي او نور فعاليتونه ........ ۱۸۰
۱۸۳. منطقوي بين الدولتي سازمانونه ........ ۱۸۲
۱۸۴. اروپايي اتحاديه ........ ۱۸۲
۱۸۵. د اروپايي اتحاديې ريښې او تکامل ........ ۱۸۳
۱۸۶. د اروپايي اتحاديې اداري طرز ........ ۱۸۶
۱۸۷. سياسي رهبري ........ ۱۸۷
۱۸۸. اداري چاري ........ ۱۸۸
۱۸۹. د نظارت سازمانونه ........ ۱۸۹
۱۹۰. مقننه قوه ........ ۱۸۹
۱۹۱. قضائيه قوه ........ ۱۹۰

## اتم فصل

۱۹۲. بين المللي قانون او بشري حقوق ........ ۱۹۱
۱۹۳. د بين المللي قانون او عدالت اساسات ........ ۱۹۲
۱۹۴. د بين المللي قانون انکشاف ........ ۱۹۳
۱۹۵. بين المللي قانون په عمل کي ........ ۱۹۳
۱۹۶. بين المللي قانون او سياست ........ ۱۹۴
۱۹۷. بين المللي حقوقي سيستم ........ ۱۹۵
۱۹۸. د قانون فلسفي ريښې ........ ۱۹۵
۱۹۹. بين المللي قانون څرنګه جوړيږي؟ ........ ۱۹۷
۲۰۰. د قانون منابع ........ ۱۹۸
۲۰۱. د قانون اطاعت کول ........ ۱۹۹
۲۰۲. د قانون اجرا [عملي] کول ........ ۲۰۰

۲۰۳. د قانون په اړوند قضاوت کول [فتوا ورکول] ........................ ۲۰۱
۲۰۴. د بین المللي محاکمو صلاحیت ........................ ۲۰۲
۲۰۵. د بین المللي قانون او عدالت کارول ........................ ۲۰۳
۲۰۶. د عادلانه جنګ تیوري ........................ ۲۰۳
۲۰۷. د جنګ عادلانه علت ........................ ۲۰۴
۲۰۸. د جنګ عادلانه سلوک ........................ ۲۰۵
۲۰۹. پر افرادو باندي د بین المللي قانون او عدالت اجرا کول ........................ ۲۰٦
۲۱۰. تر دوهمي عمومي جګړې وروسته محکمې ........................ ۲۰٦
۲۱۱. اوسنۍ بین المللي محکمې ........................ ۲۰۷
۲۱۲. بین المللي جنایي محکمه ........................ ۲۰۸

## نهم فصل

۲۱۳. د امنیت لټول ........................ ۲۱۰
۲۱۴. د جنګ علتونه ........................ ۲۱۱
۲۱۵. د سیستم په سطحه کي د جنګ علتونه ........................ ۲۱۲
۲۱٦. د دولت په سطحه کي د جنګ علتونه ........................ ۲۱۳
۲۱۷. په فردي سطحه کي د جنګ علتونه ........................ ۲۱۳
۲۱۸. ټروریزم ........................ ۲۱۴
۲۱۹. د ټروریزم سرچینې ........................ ۲۱۷
۲۲۰. د ټروریزم علتونه ........................ ۲۱۹

## لسم فصل

۲۲۱. د ملي اقتصاد رقابت ........................ ۲۲۲
۲۲۲. د بین المللي سیاسي اقتصاد تیوري ګاني ........................ ۲۲۳
۲۲۳. اقتصادي نېشنلیزم ........................ ۲۲۳
۲۲۴. اقتصادي انټرنېشنلیزم ........................ ۲۲۵
۲۲۵. اقتصادي جوړښت ........................ ۲۲٦

۲۲۶. نړیوال اقتصاد : ګلوبلایزېشن او متقابل تړاو .................. ۲۲۹
۲۲۷. تجارت ........................................ ۲۳۰
۲۲۸. د تجارت پراختیا ................................. ۲۳۰
۲۲۹. د تجارت د پراختیا عوامل (فکتورونه) ..................... ۲۳۱
۲۳۰. بین المللي سرمایه ګذاري ............................ ۲۳۲
۲۳۱. بین المللي سرمایه ګذاري او څو ملتي شرکتونه .............. ۲۳۳
۲۳۲. پولي روابط ..................................... ۲۳۳
۲۳۳. د امریکایانو له پاره د قوي ډالر تاوانونه .................... ۲۳۴
۲۳۴. د امریکایانو له پاره د کمزوري ډالر ګټې ..................... ۲۳۴
۲۳۵. د امریکایانو له پاره د کمزوري ډالر تاوانونه ................... ۲۳۵
۲۳۶. عملي اقتصاد او نېشنلیزم .............................. ۲۳۶
۲۳۷. د اقتصادي اهدافو د لاسته راوړلو له پاره د اقتصادي ............ ۲۳۷
۲۳۸. د ګمرکي تعرفاتو ممانعتونه ............................ ۲۳۷
۲۳۹. غیر ګمرکي ممانعتونه ................................ ۲۳۸
۲۴۰. پولي ممانعتونه.................................... ۲۳۸
۲۴۱. د سرمایه ګذارۍ ممانعتونه ............................ ۲۳۹
۲۴۲. د ملتپالي اقتصادي پالیسۍ راتلونکې ...................... ۲۳۹

## یوولسم فصل

۲۴۳. بین المللي اقتصاد ................................. ۲۴۲
۲۴۴. د اقتصادي همکارۍ سرچینه ............................ ۲۴۲
۲۴۵. تجارتي همکاري او پرمختیا : د نړیوال تجارت سازمان ........... ۲۴۴
۲۴۶. بین المللي وجهي صندوق .............................. ۲۴۵
۲۴۷. د نړیوال بانک ګروپ................................. ۲۴۶
۲۴۸. د بیا رغوني او پرمختیا بین المللي بانک ..................... ۲۴۷
۲۴۹. د بین المللي پراختیا ټولنه ............................. ۲۴۷
۲۵۰. بین المللي مالي ټولنه ................................ ۲۴۸

# یادونه

ما د ښاغلي ډاکټر محمدصدیق ظهیر مخکني کتاب (پولیټیکل ساینس) ته په مؤجزه لیکنه کې د پښتو یو متل راوړی وو، چې وایي: (خونه که مې وسوه دېوالونه ئې پاخه سوه). په دغه متل کې راټلونکي ته د هیلي او امید خورا غښتلی احساس پروت دئ. د یوه پښتانه کور لولپه سوی دئ خو دی دا مصیبت په دې هیله پر زړه اواروي چې د خوني دېوالونه ئې پاخه سوي دي. د نامېندیو پر ضد دي د هیلو ارمان همداسي پیاوړی اوسي.

پر افغانانو باندي د تېرو څلورو لسیزو بخولي (فاجعې) خورا درانه مصیبتونه دي. دې مصیبتو د افغانانو پر مېنه، پر ژوند او فرهنګ خورا ژوري اغېزې کړي دي. د دې اثراتو څېړنه هغه وخت ښه ترا کېدلای سي چي اوسني حالات له خپل څپاند ایشناوه ولوېږي او یو څه کښېني (ته نشین سي). د دې مصائبو تر اغېزې لاندي د منورو او تعلیم یافته افغانانو یوهستره کتله له خپل پلرني ټاټوبي څخه بېځایه سوې ده او په نړۍ کې به اوس داسي هیواد نه وي چي له دغو افغانانو څخه دي یو مخ خالي وي. خو د نېکمرغۍ ځای دئ چي دغو افغانانو په دا دوهمه مېنه هم پر خپل پلرني ټاټوبي باندي راغلي مصیبتونه هېر کړي نه دي او د هغو د تلافۍ له پاره ئې تر خپل وس زیات تلاښونه پیل کړي او په ثمر ئې رسولي دي او زه چي ئې اوس په فرهنګي او ژبنۍ برخه کي کوم نتائج ګورم نو په جرئت سره ویلای سم چي هغه کار چي په تېرو څو لسیزو کي پښتو ژبي او فرهنګ ته

سوی دئ، په تېرو څو پېړیو کي ئې ساری نه لیدل کېږي. په دغه موده کي د یادوني وړ ګټور او علمي کتابونه تالیف سوي او د چاپ په پساله سمبال سوي دي. د نړۍ له ژوندیو ژبو څخه د نني عصر و زمان علمي آثار ژباړل سوي دي او د دې علمي برياوو وياړنه د هغو متعهدو او پر وطن مينو افغانانو په برخه ده چي بې له کوم مادي امتیازه ئې خپله انرژي، خپل فوق العاده مصروف ژوند او خپل قلم و دغي وياړلي چاري ته وقف کړی دئ. دغو هيوادپالو افغانانو ته د درناوۍ سر ټيټېدل بويه!

ښاغلی ډاکټر محمدصدیق ظهیر له همدغو وياړلو افغانانو څخه دئ. د ده له نامه او کار سره اوس افغاني علمي ټولني اوموسسات پوره اشنا دي. ده پښتو فرهنګ ته څه موده وړاندي د (پوليټيکل ساينس) په نامه خورا درووند اثر (ترجمه) وړاندي او دا دئ اوس ئې د هغه په تعقيب يوه بله اکاډميکه ژباړه د چاپ له پاره تياره کړه. د ژباړي په انتخاب کي د ډاکټر ظهير علمي صلاحيت او سليقه د ډېري پاملرني او ستايني وړ ده. دی وچ ولانده نه سره ګډوي. هغسی اثر د ژباړي له پاره ټاکي چي د نني عصر و زمان علمي غوښتنو ته جواب وويلای سي. زما بشپړ يقين دئ چي دا اثر به ئې هم لکه ها بل يو د پوهنتونو او علمي موسساتو له منسوبينو او نورو مينه والو سره د هغوی په اکاډميکو مطالعاتو کي زياته مرسته وکړي.

زه ډاکټر ظهير صاحب ته د دې نوي اثر مبارکي وايم. همت دې غښتلی، قلم دې پياوړی، ژوند دې اوږد او همداسي له برياوو ډک اوسي. د افغاني فرهنګ پر زېرمه باندي د لا زياتو آثارو د زياتېدلو په هيله!

محمدمعصوم هوتک

اوکويل – کاناډا

۱۶مه د جنوري ۲۰۱۱ع

# يو څو خبري

ما یو څه وخت په جاپان کې تېر کړی دئ او هورې مې د انجنيرۍ په ځانګه کې د تحصيل پر څنګ د جاپان د تاريخي او کلتوري جوړښت او همدارنګه د بېساري چټک اقتصادي او تخنيکي پرمختګ په هکله هم څه ناڅه لوستي دي. يوه موضوع چې ما ته ډېره په زړه پوري وه هغه د جاپان په دې بېساري پرمختګ کې د ژباړې رول وو. کله چې جاپانيان د نونسمې پېړۍ په وروستيو کلونو کې له تقريباً درې سوه کلني انزوا څخه راووتل او د نړۍ د پرمختللي او د جاپان د وروسته پاتې ساينس او تخنيک څخه خبر سول، نو په دې فکر کې سول چې څه بايد وکړي.

پر وطن او قام مين جاپاني مشران له ډېرو سلاوو او مشورو وروسته دې نتيجې ته ورسېدل، چې په غرب پسې د رسېدلو او له دوی سره د رقابت کولو يوه لار دا ده چې د غرب ټول علوم ژر تر ژره جاپان ته د ترجمې له لاري راوړي. که څه هم چې د جاپان اقتصاد په هغه وخت کې د نن په شان قوي نه وو بيا ئې هم ډېر ځوانان خارجي هيوادونو ته د زده کړې له پاره ولېږل او هم ئې د امريکې، انګلستان، فرانسې، جرمني او نورو هيوادونو څخه په لوړو امتيازاتو استادان استخدام کړل، چې جاپاني زده

کوونکو ته خارجي ژبي ور زده کړي. په ډېر لږ وخت کي جاپانیان په دې وتوانېدل چي د نړۍ په ژوندیو ژبو کي ډېر زیات لیکل سوي کتابونه جاپاني ژبي ته راواړوي او له هغو څخه په ګټه اخیستلو سره خپل هیواد ډېر ژر د نړۍ د پرمختللو هیوادو په ډله کي ودروي.

زما په نظر، زموږ ګران هیواد افغانستان هم باید د پرمختګ له پاره په دې لار کي جدي او هر اړخیزه ګامونه واخلي او چي په وس ئې کېږي د نړۍ له ژوندیو ژبو څخه د هر ډول کتابو و ترجمه کولو ته زور ور کړي. په ملي سویه باندي خو په دې نېک کار کي پراخ ګامونه اخیستل او په دې لار کي پوره سرمایه ګذاري کول د دولت له مهمو کارو څخه دي، خو هغه افغانان چي په خارجي هیوادو کي اوسي هم په دې کار کي ډېره مرسته کولای سي.

د (پولیټیکل ساینس ته یوه کتنه) د کتاب تر ترجمې وروسته، چي په کال ۲۰۰۸ کي د علامه رشاد خپرندویي ټولني له خوا چاپ سو، دا دئ د پولیټیکل ساینس شاګردانو او علاقمندانو ته د (بین المللي سیاست ته یوه کتنه) د کتاب ترجمه (لنډیز) وړاندي کوم. دا کتاب چي ستاسي په مخکي دئ د امریکن یونیورسیټۍ د پولیټکل ساینس د ماسټرۍ د پروګرام د تعلیمي نصاب جز دئ. د دوو امریکایي پروفیسرانو جان رورکي Rourke John T. او مارک بویر Mark A. Boye له خوا په ګډه په کال ۱۹۹۶ کی لیکل سوی او هر دوه کاله د تجدیدنظر سره دوباره چاپ سوی دئ. دا اوسنۍ ترجمه ئې د ۲۰۱۰ کال د چاپ څخه سر ته رسېدلې ده. ما دا کتاب تلخیص او ترجمه کړی دئ، په دې معنی چي هغه برخي مي ځني ایستلي دي، چي د امریکې په متحده ایالاتو پوري ډېري مختصي دي او زما په نظر به ئې شائې د افغاني زده کوونکو له پاره مفهوم اخیستنه له ستونزو ډکه وي. سره له دې هم، څرنګه چي کتاب د امریکائې زده کوونکو له پاره لیکل سوی دئ، ځکه ئې نو ډېر مثالونه او مسایل د امریکې

په سياسي او اجتماعي سيستم پوري اړه لري خو زما يقين دئ چي د همدې مثالو او د امريکا د سياسي، اقتصادي، اجتماعي ، او کلتوري ساختمان زده کړه زموږ ځوان نسل ته هم ګټوره او هم لازمي ده.

د دې معنی هيڅکله دا نه ده، چي ګويا زده کوونکي بايد ټول هغه نظريات چي په کتاب کي راغلي دي په پټو سترګو ومني، او دا معنی هم نه لري چي زه ګويا له ټولو سره موافق يم. زما په نظر د دې کتاب د مفاهيمو، نظرياتو او مثالونو پوهه له زدکوونکو سره دا مرسته کولای سي، چي په افغاني ټولنه کي ئې د مثالونو څرک وباسي او د تطبيق ساحه ئې وپلټي.

د دې کتاب يوولس فصلونه ما ترجمه او تلخيص کړي دي. ځيني فصلونه اوږده او ځيني بيا لنډ ځکه دي، لکه مخکي چي مي وويل، موضوعات ئې يوازي د امريکا يانو لپاره مهم دي. ګرانو لوستونکو ته معلومه ده، چي و پښتو ژبي ته د مسلکي اثارو ترجمه کول ستونزمن کار دئ. ما ډېر زيار ايستلی دئ، چي ترجمه روانه او اسانه راسي، او ډېره هڅه مي کړې ده چي د هغو پرپېچلو مفاهيمو لپاره چي زه په دې ژباړه کي ورسره مخامخ سوی يم په پښتو ژبه کي مروج مفاهيم استعمال کړم. د وضاحت لپاره مي د ځينوسره انګرېزي لغات هم ليکلي دي. مګر بيا هم که چېري کومه جمله مبهمه وي، لطفاً ئې يو ځل بيا ولولئ ښائې معنی ئې روښانه سي. که بيا هم د جملې مفهوم روښانه نه سو نو دا زه د ځان نيمګړتيا بولم او له ګرانو لوستونکو څخه هيله لرم، چي د خپلي بزرګوارۍ له مخي عفوه راته وکړي.

زما وروڼو ډاکتر محمد رفيق ظهير او انجنير محمد نادر ظهير زموږ د هفته ييز قدم وهلو پر وخت د مناسبو لغاتو او اصطلاحاتو په برخه کي ډېره مرسته راسره کړېده، چي کور ودانی ور ته وايم. په پای کي بايد ووايم چي دا ترجمه، لږ ده که ډېره، ښه ده که بده، د محمد معصوم هوتک له مرستي

پرته ئې تر تاسو ښاغلو لوستونکو پورې رسول ممکن نه وه. معصوم هوتک سربېره پر دې چې همېشه ئې و دې کار ته تشویق کړی یم، دا ترجمه ئې، د کلمې په واقعي معنی، ټکي په ټکي لوستلې او ایډیټ کړې ده. عمر دي ئې ډېر، کور دې ودان او پرقلم دې برکت وي. زه تر حد زیات ځني ممنون یم، مګر نو د څه کم پنځوسو کالو اشنایی نتیجه باید همداسې وي.

په درناوي
محمد صدیق ظهیر
ویرجینیا– امریکا
فبروري ۲۰۱۱

# لومړی فصل

## نړیوال سیاست په پام کې نیول او د هغه په هکله فکر کول
## Thinking and Caring about World Politics

ویلیام شکسپیر (۱۵۶۴ – ۱۶۱۶ع) وایي: "ټوله نړۍ یو سټېج دئ او ټول نارینه او ښځې یوازې لوبغاړي دي". د دې سټېج ځني کرکټرونه قهرمانان او ځیني بیا ناوړه اشخاص دي. هغه اعمال چې پر سټېج باندي سر ته رسېږي ځیني وخت له هیجانه ډک او کله بیا له غمونو ډک وي. ځیني وخت عدالت سرته رسېږي، خو خبره تل داسي نه وي. مګر د خپل ټول پرله پېچلي توب سره، نړیوال سټېج ته پاملرنه په کار ده.

کله چې تاسي یوه ډرامه، فلم او یا کوم ټلویزیوني پروګرام ګورئ، نو په هغوی باندي پوهېدل هغه وخت اسانه کېږي چې تاسي د ډرامې، فلم او یا ټلویزیوني پروګرام په هکله [مثلا د کره کتني له لاري] یو څه معلومات ولرئ. په همدې ډول، د دې کتاب پوهېدل هغه وخت اسانه کېږي چې د دې نړیوال سټېج کرکټرونه او د هغه په هکله ځیني مقدماتي معلومات ولرو.

د عادي ډرامي په خلاف، د نړیوال سټېج د ډرامي غړي اشخاص نه بلکي سازمانونه دي. دولتونه د دې سټېج سازماني اکټران دي، او دولتونه دي چې د دې سټېج اساسي لوبغاړي تشکیلوي اوتقریباً ۲۰۰ هیوادونه د

دې سټېج لوبغاړي دي. لکه په عادي ډرامه کې چې هر لوبغاړي په ډېر حسادت سره د خپل شهرت د ساتنې له پاره هڅې کوي، پر نړیوال سټېج باندي هم هر لوبغاړی [دولت] د خپل ملي حاکمیت د ساتنې او دفاع له پاره هڅې کوي. همدا ملي حاکمیت دولتونه د نورو لوبغاړو څخه بېلوي. ښکاره خبره ده چې ملي حاکمیت دا معنی هم لري چې نړیواله ډرامه یو ډایرکټر نه لري چې د لوبغاړو تر منځ نظم برقراره کړي. د مرکزي قدرت نسته والی د لوبغاړو تر مینځ د تشنج د منځته راتلو لامل ګرزي. همدارنګه، په داسي حال کې چې ټول دولتونه له حقوقي پلوه سره مساوي دي، مګر واقعیت دا دئ چې ځیني لوبغاړي تر نورو ستر رول لري. د امریکا متحده ایالات یقیناً د لوبغاړو د لیست په سر کې ځای لري، چین او ځني نور هیوادونه هم عمده لوبغاړي دي.

یو لړ بین المللي سازمانونه هم د دولتو سره پر سټېج باندي شریک دي. له دې جملې څخه تقریباً ۳۰۰ ئې بین الحکومتي سازمانونه intergovernmental organizations دي چې دولتونه ئې غړي دي. ځیني ئې (د ملګرو ملتو په شان) جهاني او ځیني ئې بیا (د اروپایي اتحادیې په شان) سیمه ییز بین الحکومتي سازمانونه دي. بله ډله بیا غیرحکومتي سازمانونه (NGO) دي چې انفرادي اشخاص ئې غړیتوب لري. د غیرحکومتي (NGO) سازمانو شمېر زرهاوو ته رسېږي او د بین المللي سیاست تقریباً هره برخه ئې په بر کې نیولې ده. یو مثال ئې د اېډز بین المللي ټولنه the International AIDS Society ده.

## زموږ له پاره د نړیوال سیاست اهمیت:

د امریکا په متحده ایالاتو کې، زیات خلک په دې قانع نه دي چې دوی باید په نړیواله ډرامه کې فعاله ونډه ولري. ډېر وړوکي اقلیت د

نړیوال سیاست په هکله معلومات لري او په منظمه توګه خارجي خبرونه اوري. د ۲۰۰۱ کال د سپتمبر د یوولسمي تروریستي حملې له نړیوال سیاست سره د امریکایانو علاقه یو لږ څه زیاته کړه. د سپتمبر تر یوولسمي مخکې، په سلو کې ۳۳ امریکایانو ویل چې دوی بین المللي خبرونه تعقیبوي، دا فیصدي په کال ۲۰۰۶ کې یوازې ۳۹ ته زیاته سوه. د ۱۸ څخه تر ۲۴ کلني ځوانان خو بیا د نړیوالو چارو په هکله بیخي لږ معلومات لري. په ۲۰۰۶ کال کې د امریکا د نېشنل جیوګرافیک مجلې یوې سروې وښودله چې په امریکا کې د دغه عمر په سلو کې ۶۳ ځوانانو ونه کولای سوای چې د نړۍ په جغرافیائې نقشه کې پر عراق او په سلو کې ۷۰ ونه سوای کولای چې پر افغانستان باندي ګوته کښېږدي (پیدا ئې کړي)، دا په داسي حال کې دئ چې په دې دواړو هیوادو کې امریکائې عسکر جنګېږي.

دا مهمه خبره باید په پام کې ولرو چې له امریکا سره په مقایسه په نورو پرمختللو هیوادو کې د نړیوالو مسایلو په هکله د خلګو معلومات زیات دي. د هغې مطالعې له مخې چې مخکې ئې بیان وسو، په نهو(۹) هیوادو کې له ۱۸ څخه تر ۲۴ کلونو ځوانانو څخه د نړۍ د جغرافیې په هکله ۵۶ پوښتني او د نړیوالو مسایلو په هکله ۸ پوښتني وسولې. د امریکا مقام په اتو (۸) هیوادو کې د پای له خوا اول او تر مکسیکو، چې د تعلیم امکانات پکښې لږ دي، یو څه لوړ وو. د امریکا د متحده ایالاتو د نفوس په هکله پوښتني ته یوازې په سلو کې ۲۵ ځوانانو صحیح جواب وړاندي کړی وو.

آیا د نړۍ د پېښو په هکله دومره بې علاقه ګۍ معقول کار دئ؟ نه، هیڅکله نه. په دې درسي کتاب کې په ندرت سره هڅه کوو تاسي ته ووایو چې څرنګه فکر وکړئ او یا څه وکړئ، مګر پر یوه پیغام چې موږ ټینګار کوو هغه دا دئ: د نړۍ ډرامه مهمه ده او زموږ جدي توجه ورته په

کار ده او تر دې لا مهمه خبره دا ده چې موږ باید د غیرفعال کتونکي په رول قناعت ونه کړو.

تر دې خبري وروسته منطقي پوښتنه دا ده چې: "آیا زه په یوازي سر څه تأثیر لرلای سم؟" بلې هو! تاسي په یوازي سر تأثیر درلودلای سی. دا واقعیت دئ چې موږ ټول نه سو کولای جمهور رئیسان او یا وزیران سو، مګر موږ کولای سو چې عمل وکو او خپل نظریات خلګو ته وروپېژنو.

## مستقیم عمل کول:

پر نړیوالو روابطو باندي د تأثیر ښندلو یوه لار په بېلابېلو اشکالو سره مستقیم عمل کول دي. د امریکا په متحده ایالاتو کي، د ملیونو انفرادي محصلینو پراخو مظاهراتو، چي کله کله تشدد هم ورسره ملګری وو، د ویتنام د جګړې په ختمولو کي مرسته وکړه. د پوهنتونو شاګردانو په ۲۰۰۳ کال کي د امریکا له خوا د عراق د اشغال په طرفداري او همدارنګه پر ضد مظاهرې وکړې. محصلینو د خارجي مسایلو په اړوند هم مظاهرې کړي دي. په کال ۲۰۰۶ کي، د مثال په توګه، د ټکساس په پوهنتون کي په زرهاوو محصلینو د مهاجرینو د حقوقو په طرفداري مظاهرې وکړې.

## رایي ور کول:

ډیموکراسي ګاني دا امکانات برابروي چي پر نړیوال سیاست باندي د رایي د صندوق له لاري تأثیر وښندل سي. لیډران د انتخاباتي مبارزو د دوران پر وعدو ډېر وخت وفا نه کوي، مګر انتخاب سوی لیډر پر پالیسي باندي تأثیر ښندلای سی. د امریکا د متحده ایالاتو د جمهوري ریاست د ۲۰۰۴ کال په انتخاباتو کي، جورج بوش او جان کېري پر یو شمېر بین

المللي مسايلو، د مثال په توګه د عراق جنګ، سره مخالف وه. رايه ورکوونکو د امريکا د خارجي پاليسۍ د پر مخ بيولو له پاره جورج بوش انتخاب کړ. ځيني کسان چې د جورج په انتخابېدو خوابدي وه، د امريکا ځوانان ملامت وبلل. دا ځکه چې ډېر زيات ځوانان د جان کېري طرفداران وه او په امريکا کې، د نورو هيوادو په شان، ځوانان چندان په رايي ورکولو کې برخه نه اخلي.

مګر په ۲۰۰۶ کال کې د رايي ورکوونکو په افکارو کې ډېر تغيرات راغلل او ډيموکراټ ګوند په کانګرس کې چوکۍ لاسته راوړې. د يوه تحليل ګر په قول ډېرو کسانو به ويل چې: "زه ډيموکراټ کانديد ته رايه ورکوم، ځکه زما له جنګ څخه بد راځي، زما بوش خوښ نه دئ، زه غواړم خپل نظر اظهار کړم". په داسي حال کې چې د ځينو کسانو حتی د ډيموکراټ کانديد نوم هم زده نه وو.

په ځينو هيوادو کې د ريفرندم له لاري د بين المللي مسايلو په هکله مستقيمه رايي ګيري هم امکان لري. په کال ۲۰۰۵ کې، د مثال په توګه، په لکسمبورګ او هسپانيه کې ئې د اروپايي اتحادئې اساسي قانون د مستقيمي رائې ورکولو له لاري تصويب کړ، مګر د فرانسې او هالنډ رايه ورکوونکو هغه د مستقيمي رايي ورکولوله لاري رد کړ. دا چې خلګ د خارجي پاليسۍ په هکله مستقيم تصميم نيسي، چندان عموميت نه لري، مګر ورځ په ورځ د امريکا په متحده ايالاتو او اروپايي هيوادو کې د ريفرندم او مستقيمي ډيموکراسۍ direct democracy پلويان زياتېږي.

## پاليسي جوړوونکي کېدل:

دا هم ممکنه ده چې تاسي د انتخابي مقاماتو له پاره ځانونه کانديد کړۍ او يا هم کولای سی په هغو ايجنسيو کې وظيفه پيدا کړۍ چې ستاسي

د هیواد د خارجي چارو سره سروکار لري. تاسي همدارنګه کولای سئ په ملګروملتونوUnited Nations او یا په نورو مهمو بین المللي سازمانو کي ځانته کار پیدا کړی. په دې سازمانو کي و یوه لوړ مقام ته رسېدل یو څه وخت غواړي، مګر امکان ئې وجود لري.

د پولیټکل ساینس مطالعه د پالیسۍ جوړوونکي مقام ته د رسېدلو په لار کي لومړی ګام ګڼل کېږي. د امریکا پخوانۍ خارجه وزیره کاندولیسا رایس، پخوانی جمهور رئیس بیل کلینټن او مېرمن ئې هیلري کلینټن، او د ملګروملتو سرمنشي بان کي مون خپل عالي تحصیلات په پولیټیکل ساینس کي سر ته رسولي دي.

مهم ټکی دا دئ چي ستاسي پر عمل باندي حساب کېږي، یعني ستاسي رایه ورکول، اعتراض کول، په سیاسي سازمانو کي برخه اخیستل او د هغوی سره مرسته کول، حتي په سیاسي نظر غوښتنه کي د خپل نظر اظهارول تأثیر لري. لږ انفرادي اعمال په یوازي سر اثر لرلای او یا په نړیوال سیاست کي تغیر راوستلای سي، مګر مجموعه د انفرادي اعمالو تأثیر لرلای سي. سیاست ته د یوه ننداړچي په توګه مه ګورئ. په سیاست کي فعاله برخه واخلئ.

## تیوریتیکي فکر کول: پېښي په متن کي مطالعه کول

### Thinking Theoretically: Putting Events in Context

دا مهمه ده چي موږ د نړۍ د پېښو په هکله خپل نظریات سره تنظیم کړو. همدا نن ورځ چي دا ټکي لیکل کېږي، د نیویارک ټایمز د لومړي مخ خبرونه د لاندي مسایلوپه هکله دي: په افغانستان کي د ځان مرګي بمب، د اسرائیلو په وړاندي د امریکا د متحده ایالاتو خارجي پالیسي، د روسیې او ګرجستان مخالفت، د ایران په اصطلاح ذروي وسلو پروګرام او نړیوال

اقتصادي رکود او د امریکا پر متحده ایالاتو باندي د هغه تأثیرات. هر یو له دې خبرو څخه په یوه ټاکلې موضوع پوري اړه لري، مګر د یوه پراخ متن context اجزاء تشکیلوي. که تاسي د دې مسایلو سره آشنا نه یاست، نو دا ډېره مهمه ده چي په منظمه توګه د خبري میډیا له لاري ځانونه ورسره آشنا کړئ.

په دې ډول مسایلو باندي د ښه پوهېدلو له پاره دا لازمه ده چي په تاریخي او همدارنګه تیوریکي متن ئې ځانونه پوه کړو. په دوهم فصل کي، د نړیوال سیاست په اساساتو باندي د پوهېدلو له پاره، نړیوال سیستم ته یوه لنډه تاریخي کتنه سوې ده. تیوریکي فکر کول په یوه پراځ متن context کي د مسایلو د مطالعه کولو سره مرسته کوي. سیاسي تیوري political theory یوه نظریه یا د یو لړ سره تړلو نظریاتو مجموعه ده چي موږ ته دا ښیي چي شیان ولي پېښیږي او سیاسي پېښي څرنګه یو له بله سره ارتباط لري.

تیوریکي فکر کول ډېري ګټي لري. یوه ګټه ئې دا ده چي زموږ سره د پوهني knowledge په جوړېدلو کي مرسته کوي. که موږ هره پېښه بېساري [بې جوړې unique] وبولو، بیا نو موږ د تصادفي او بې ارتباطه پېښو یوه مجموعه په لاس کي لرو. مګر که موږ تیوریکي فکر وکړو، بیا نو موږ په یو پاټرن [نمونه، فردي خصوصیات pattern] پسي ګرزو چي زموږ سره د پېښو په ښه ترا پېژندنه، او حتی د پېښو په پېش بیني کي مرسته وکي. بل دا چي تیوریکي فکر کول موږ ته د یوې مشخصي پالیسۍ د ارزیابي کولو چانس راکوي. د مثال په توګه، د امریکا په متحده ایالاتو او نورو ډیموکراسي ګانو کي دا بحث روان دئ چي ایا په منځني ختیځ، او نورو هیوادو کي ډیموکراسۍ ته پراختیا ورکړه سي کنه. د «ډیموکراټیکي سولي تیوري» وایي چي: ډېر لږ پېښېږي چي ډیموکراټیک دولتونه دي یو له بله سره جګړه وکړي. اوس نو که دا تیوري صحیح وي، نو په نړۍ کي د

سولي د راوستلو لار به دا وي چې په منځني ختیځ او نورو هیوادو کې د ډیموکراسۍ د منځته راوړلو او پراختیا له پاره هڅې وسي. په دې کتاب کې به تاسي له بېلابېلو سیاسي تیوري ګانو سره مخامخ سئ چې عمده ئې د ریالیزم او لیبرالیزم تیوري ګاني دي.

## ریالیستي تیوري:

ریالیزم هغه نظریه ده چې د هغې له مخې نړیوال سیاست پر شخصي منافعو راڅرخي. ریالیستان په دې باور دي چې هیوادونه د خپل نظامي او اقتصادي قدرت د ساتلو او هم د پراختیا له پاره رقابت او مبارزه کوي. سربېره پر دې، ریالیستان د قدرت له پاره مبارزې ته د صفري مجموعې د بازۍ zero-sum game په ستر ګه ګوري، په دې معنی چې د یوه هیواد ګټه خامخا د نورو هیوادو تاوان دئ. ریالیستان په دې عقیده دي چې د خپلو ملي منافعو د ساتلو له پاره د دولتونو تر منځ مبارزه د نړۍ وال سټېج اساسي عمل تشکیلوي. د دې نظریې له مخي ریالیستان په دې عقیده دي چې هیوادونه باید د خپلي خارجي پالیسۍ په ټاکلو کې د قدرت انډول په نظر کي ونیسي. د ریالیستانو په نظر ملي منافع هغه څه دي چې د یوه دولت امنیت، نفوذ، نظامي او اقتصادي قدرت تقویه کوي او یا ئې ساتي. د ریالیستانو له پاره زور حق دئ ایا لږ تر لږه د بریالیتوب لاره هواروي.

## لیبرال تیوري:

لیبرالیزم عقیده لري چې خلک او هیوادونه چې د دوی نمایندګي کوي کولای سي یو له بل سره د همکارۍ له لارې، د بین المللي سازمانو او بین المللي قوانینو پر اساس، متقابلي ګټې وپلټي. لیبرالان د ریالیستانو دا نظریه چې سیاست په خپل ذات کې د قدرت له پاره مبارزه ده په کلکه

ردوي. ليبرالان قدرت د يوه فکتور په توګه بالکل نه ردوي، مګر دوی په دې عقيده دي چي اخلاقيات، انساني احساسات، او د همکارۍ احساس هم په نړيوال سياست کی پر ملي ليډرانو باندي تأثير درلودلای سي. ليبراليزم همدارنګه په دې عقيده دئ چي بين المللي سياست کېدلای سي غير صفري مجموعه وي، يعني داسي شرايط منځته راتلای سي چي په هغه کي دواړه خواوي ګټه وکړي. ليبرالان همدارنګه په دې فکر دي چي بشريت ټول اشتراک سره لري او کېدای سي چي انسانان د خپلو هيوادو تر سرحداتو په ها خوا د نورو خلګو او ګروپونو سره ښه روابط ولري.

# دوهم فصل

## د نړیوال سیاست تکامل

## The Evolution of World Politics

دا فصل دوه هدفه لري. یو ئي دا دئ چي د هغو موضوعاتو او پېښو لپاره تاریخي بنسټ کښېږدي چي تاسي به د بین المللي روابطو په تحلیل کي ډېر ځله ورسره مخامخ سئ. بل هدف ئې دا دئ چي د اوسني نړیوال سیاسي سیسټم د تکاملي جریان یوه خاکه کښېږدي. د بین المللي سیسټم مفهموم دا دئ چي: (۱) نړۍ یوازي د اجزاوو یعني هیوادونو مجموعه نه ده، (۲) نړیوال سیاست یوازي د هیوادونو تر منځ د انفرادي فعل او انفعال مجموعه نه ده او (۳) د سیسټم د اجزاوو تر منځ د فعل او انفعال یو عمومي طریقه او اسلوب وجود لري. د بین المللي سیسټم ماهیت او پر نړیوال سیاست باندي د بین المللي سیسټم تاثیر په دریم فصل کي نور هم څېړل سوی دئ.

د دې فصل په لوستلو کي حوصله ولرئ. تاسي به ووینی چي یوه موضوع په لنډ ډول تشریح سوې ده او ډېر ژر بله موضوع رامیدان ته سوې ده. تاسي به ښائې وواياست چي "لږ کرار سه، دا موضوع یو څه زیاته تشریح غواړي". حوصله مند اوسئ! په نورو فصلونو کي به ئي جزئیات ولولئ.

## تکامل کوونکی نړیوال سیسټم – لومړنی انکشاف

## The Evolving World System: Early Development

بې شمېره جهاني او سیمه ییز بین المللي سیسټمونه له ډېر وخت

راهیسي وجود لري. ځیني پوهان ئې ریښه ۷۵۰۰ کاله پخوا د جنوبي بین النهرین د بابل (اوسني عراق) سیمي ته وراوړدوي. د نن ورځي سیاست له پخوا څخه ډېر توپیر لري، مګر د پخواني حالت څخه اوسني حالت ته دا تغیر په تدریجي توګه تکامل راکړی دئ.

## لرغوني یونان او روم:

موږ د بین المللي سیسټم څرک د یونان په ښار– دولت city-state (د ۷۰۰ قبل المیلاد څخه تر ۳۰۰ قبل المیلاد پوري) او همدارنګه د روم د امپراتورۍ په صعود او نزول (د ۵۰۰ قبلاالمیلاد څخه تر ۴۷٦ بعدالمیلاد پوري) کي موندلای سو. په دغه دوران کي موږ د نن ورځي څلور مهم سیاسي مشخصات د لومړي ځل لپاره لیدلای سو. دا مشخصات په راوروسته کي تقریباً له منځه ولاړل، مګر زر کاله وروسته دوباره راښکاره سول. دا څلور مشخصات په لاندي ډول دي:

**قلمروي دولت** (یعني هغه دولت چي قلمرو ئې معلوم وي):

د یونان تر ښار– دولت مخکي، سیاسي سازمان پر یوه حکمران یا پر یوه کلتوري ګروپ، لکه قبیله، ولاړ وو. حکمران یا قبیلې پر قلمرو باندي کنټرول درلود، مګر د هغو خلګو سیاسي ارتباط چي د قلمرو په دننه کي ئې ژوند کاوه د حکمران یا د ګروپ سره وو، نه د قلمرو سره. قلمرو په حکمران اړه درلوده او د خلګو سره د قلمرو د ملکیت احساس وجود نه درلود. د یونان د ښار– دولت په منځته راتلو سره قلمرو هم د یو سیاسي واقعیت په توګه رامنځته سو. د ښار– دولت په دننه کي خلګو د مځکي د ملکیت یو ډول دایمي احساس پیدا کړ، او د قلمرو سره دا ارتباط د دوی د سیاسي هویت یو جز وګرزېدی. په نتیجه کي، د تابعیت citizenship

مفهوم وده وکړه او داسي قوانین رامنځته سول چي د هغو پر اساس د یو چا تابعیت او نه تابعیت ټاکل کېدی. تر ۴۵۰ قبل المیلاد وروسته د اتن قانون Athenian law د قلمرو پر اساس د تعریف سوي سیاسي واحد په دننه کي خلګو ته تابعیت citizenship اعطا کړ. نوي کسانو ته تابعیت هغه وخت ممکن وو چي مور او پلار دواړه به ئې د اتن تبعه وه او یا به د قانوني لاري د تابعیت لپاره منل کېدل. په مجموع کي به ښاري اتباع citizens د نفوس یو پر دریمه برخه تشکیلول.

**حاکمیت** (استقلال، خودمختاري):

ارسطو (۳۲۲-۳۸۴ قبل المیلاد)، په خپل مهم اثر چي سیاست Politics نومېږي، داسي استدلال کوي چي نهائي اقتدار او صلاحیت authority نه یوازي د حکمرانانو څخه بلکي د یو سیاسي واحد د قوانینو او حکومتي سیستم څخه سرچینه اخلي. ځکه نو، د یونان هر polis یا ښار- دولت د خپلو قوانینو تر سائې لاندي ځانونه مستقل او خودمختاره بلل. د دې معنی دا وه چي هیڅ یو بل عالي اقتدار، مذهبي او یا غیر مذهبي، ئې په رسمیت نه پېژندی.

## نېشنلیزم:

د یونان د ښار- دولت اتباعو خپل هویت په پولیس polis کي څرګنداوه او هغه ئې د خپل سیاسي هویت او همدارنګه د اوسېدلو د ځای په توګه پېژندی. لکه ارسطو چي ویلي دي: "انسان د پولیس یو حیوان دئ". دا ډول فکري حالت د نېشنلیزم مقدماتي ګامونه وه، چي نن ورځ د سیاسي هویت ډېر مهم احساس دئ چي خلګ، حکومت او قلمرو یو له بله سره نښلوي.

## ډيموکراسي:

همدارنګه، د يونان په ښار – دولت کې، د بشر په تاريخ کې د لومړي ځل لپاره، اولس د سياسي اقتدار سرچينه وګرزېدی. [يعني اولس، نه حکمران يا پاچا، د سياسي اقتدارخاوند سو] د اتن خلګو "ځانونه د کوم پاچا رعيت نه بلل.... بلکې دوی تبعه citizens وه چې د خپل پوليس د اداري او لارښودني مسئوليت ئې پر غاړه درلود" د پوليس په چارو کې د خلګو د برخې اخيستني مفکوره په اتن کې، چې تقريباً د ۱۵۰ کالو لپاره ډيموکراسي پکښې موجوده وه، خپل اوج ته ورسېدله. په همدې وخت کې روم لوېد يځ لوري ته ډېر پرمختګ وکړ. د اتن په شان، روم هم يو ښار– دولت وو چې لويه امپراتوري ځني جوړه سوه او بالاخره دا امپراتوري هم د زوال سره مخامخ سوه. همدارنګه، روم هم د اتن په شان يوه ډيموکراسي درلوده چې د قبل الميلاد په لومړۍ پېړۍ کې د نظامي ديکتاتورۍ له خوا تر پښو لاندې سوه. موږ نه سو کولای چې د اتن او روم سياسي سيستمونه د اوسني موډرن سيستمونو سره مقايسه کړو. د مثال په توګه، د اتن ډيموکراسي د اتن په بالغ او نارينه اتباعو پوري محدوده وه، چې ښائي د ښاري اوسېدونکو په سل کې ۱۵ به ئې په بر کې نيول. ښځې، مريان، او اوسېدونکي خارجيان، چې ميتيک metics بلل کېدل، د برخه اخيستني څخه محروم کړه سوي وه. خو سربېره پر دې هم، کولای سو د اوسني موډرن دولت د شکل بندۍ، لکه حاکميت، نېشنليزم او ډيموکراسۍ کرښپل و دې لرغوني دوران ته ورسوو.

## د روم تر سقوط وروسته ، د ۴۷٦ څخه تر ۱۷۰۰ ميلادي پوري:

د روم پنځه سوه کلني استبداد او امپراتورۍ د ډيموکراسۍ او نېشنليزم ډېر مفاهيم او عقايد له منځه يووړل. مګر بيا هم دا افکار بالکل

مړه نه سول. دوی فقط د یوې زر کلنې دورې لپاره مړژواندي پاته سول او د بیر ته راژوندي کېدلو لپاره ئې مناسبو تاریخي شرایطو ته انتظارایستی. په دې اوږده دوران کې، چې منځنۍ پېړۍ Middle Ages بلل کېږي او تقریباً تر ۱۵۰۰ میلادي پوري دوام لري، په لوېدیځ کې سیاسي قدرت په دوو لارو اعمالېدی چې یو ئې د واک جهان شموله universal شکل او بل ئې دواک محلي شکل وو.

## په منځنیو پېړیو کې جهان شموله واک (قدرت):

په منځنیو پېړیو کې حکومت داري تر یو حده پر ډېر پراخ قدرت ولاړه وه چې قلمرو او خلګ ئې په کنټرول کې وه مګر دا ډول حکومتونه نه په قلمرو او نه هم په خلګو باندې مشخص کېدل. د دې ډول حکومتونو قدرت او واک مذهبي او غیر مذهبي جهان شموله universal اړخونه درلودل.

## مذهبي واک

### Religious Authority

د روم کاتولیکي کلیسا د دې ډول جهان شموله واک یوه منبع وه چې پر څو لارو ئې په قلمرو کې د اتحاد سره مرسته کوله. کلیسا لاتیني ژبه ژوندۍ ساتلې وه او له دې لارې ئې د روشنفکرانو لپاره مشترکه ژبه وړاندې کړې وه. د حق، عدالت او داسي نورو سیاسي مفاهیمو تکامل د عیسویت پر دکتورین ولاړ وو. حتی پاچهانو هم په تیوري کې (او زیات وخت په عمل کې) د پاپ قدرت ته غاړه ایښووله. پاپ په خپل وار سره، د بېلابېلو زورورو پاچهانو په ملاتړ،د جهاني عیسوي دولت universal Roman-Christian state د پراختیا غوښتنه رامنځته کړل. و دې هدف ته د رسېدلو لپاره په کال ۸۰۰ میلادي کې پاپ دریم لیو Pope Leo III د

**یو جرمنی پاچا، شارلمیین** Charlemagne**، پر سر د روم د امپراتور** “Emperor of Romans” **تاج ورکښېښود.**

## غیرمذهبي واک

### Secular Authority

**د منځنیو پېړیو د مخ پر وړاندي تلو سره، د کاتولیکي کلیسا پراخ قدرت په سترو څو نژادي امپراتوریو تعویض سو. د استروهنګرین** Austro-Hungarian**، برتانیې، چین، هالنډ، فرانسې، جرمني، عثماني ترکیې، روسیې، هسپانیې او نورو امپراتوریو تر کنټرول لاندي خلګو په کلتوري لحاظ د امپراتورانو سره اړه نه درلوده او د دوی په وړاندی ئې د وفادارۍ احساس ډېر لږ وو. ډېرو پاچهانو بیا په خپل وار سره د عوامو په وړاندي د قوي سیاسي هویت احساس نه درلود او ادعا ئې درلوده چي د دوی قدرت د خدای له خوا راغلی دئ. دا امپراتورۍ تر شلمي پېړۍ پوري راورسېدلې، مګر په پای کي د نېشنلیزم په څپو کي له منځه ولاړې.**

## په منځنیو پېړیو کي سیمه ییز قدرت:

**سیمه ییز (محلي) قدرت د فیوډالي سیستم په نامه یادېدی. دا سیستم د جاګیردارۍ پر شاوخوا سره تنظیم سوی وو چي په هغه کي اشرافو تقریباً مکمل حاکمیت درلود. په تیورۍ کي، دا اشراف د یوه پاچا یا امپراتور تابع بلل کېدل. مګر په حقیقت کي، دوی معمولاً خودمختاره وه او ځیني وختونه ئې قدرت تر هغه پاچا چي دوی ئې ګویا تابع وه، زیات وو.**

**په دې مهمه خبره باید پوه سو چي په منځنیو پېړیو کي د قلمرو او سیاسي قدرت مفاهیمو له اوسني دوران سره ډېر زیات توپیر درلود. په**

رشتیا سره هم پاچهانو او اشرافو به یو ټاکلي قلمرو په کنټرول کي درلود، مګر په تیوریکي لحاظ دوی پر قلمرو باندي حاکمیت نه درلود. مګر، [د دوی په اصطلاح]، خدای تعالی او د خدای تعالی کلیسا پاچهانو ته پر ټاکلي قلمرو باندي د حاکمیت حق ورکاوه. پاچهانو بیا، په خپل وارسره، د خپل قلمرو ځیني برخي خپلو تابع اشرافو ته وربخښلې. د فیوډالي سیستم ماهیت داسی وو چي متابعین (یعني فیوډالان) په تیوریکي لحاظ د پاچهانو تابع وه، او پاچهان بیا په تیوریکي لحاظ د امپراتورانو او پاپانو (د کلیسا مشر) تابع وه. د دې معنی دا وه چي حاکمیت په حقوقي لحاظ، او زیات وخت په حقیقت کي هم، وجود نه درلود. عوامو ډېر لږ او یا هیڅ قدرت نه درلود او رعیت subjects بلل کېدل، چي مقام ئې د مفهوم له مخي تر تبعه citizen و ملکیت ته نژدې وو. [یعني عوام تبعه نه بلکي ملکیت بلل کېدل].

## د فیوډالي سیستم زوال:

په منځنیو پېړیو کي ډېر داسي تغیرات راغلل چي د فیوډالي سیستم د زوال لپاره ئې زمینه برابره کړه. د نظامي تکنالوجۍ منځته راتلل او اقتصادي پراختیا په دې کار کي تر ټولو عمده رول لوبولی دئ.

## نظامي تکنالوجي:

د دیارلس سوه کلونو په نیمایي کي په اروپایي جنګونو کي د باروتو او نورو نظامي تکنالوجیو د په کار اچولو په نتیجه کي کوچنیو فیوډالي جاګیردارانو نور نه سوای کولای چي د ځان دفاع وکړي. کم تجربه عوامو ډېر باتجربه او دلاوره شوالیه ګان، چي نخبه فیوډالي جنګیالي وه، په توپک ویشتلای او له آسه راغورځولای سوای. ډېر لوی فیوډالي دفاعي

قصرونه په نسبتاً ارزانو توپونو تخریبېدلای سوای. د دې واقعیتونو معنی دا وه چې یو قوي دفاعي سیستم ته اړتیا وه چې هغه یوازې د پراخ قلمرو لرونکي واحد یعني دولت په وس پوره وه.

## اقتصادي پراختیا:

د اروپا پرمختلونکي اقتصاد هم د فیوډالي سیستم بیخ وروکیښ. پرمختللي تجارت د اقتصادي پیاوړتیا او پرمختګ سره ډېره مرسته وکړه. د دیارلسمي پېړۍ په وروستیو کلونو کې د اسیا او منځني ختیځ پر ډېرو برخو باندې د مغولي امپراتورۍ کنټرول داسي ثبات منځته راووست چې د تجارت د پراختیا له پاره ئې ډېره زمینه برابره کړه. د آسیا سره تجارت اروپایان دې ته وهڅول چې لویې بېړۍ جوړې کړي، چې دې کار په خپل وار سره د تجارت د پراختیا امکانات لا پسې زیات کړل. د ۱۲۷۱ او ۱۲۹۵ کلونو تر منځ و چین او نورو سیمو ته د مارکوپولو سفرونه د دې نویو تجارتي فعالیتونو سره تړاو درلود. د نویو تجارتي لارو همدا پلټني وې چې، د نورو شیانو تر څنګ ئې، په کال ۱۴۹۲ کې د کریستوفر کولمبوس Christopher Columbus د سفر (د امریکې لویې وچې کشف) لپاره لاره هواره کړه.

د پراخي پیمانې تولید mass production د اقتصادي پیاوړتیا یو بل فکتور وو. د انفرادي کسب کارانو ځای ابتدایي فابریکو ونیو. پوره صنعتي کېدل industrialization تر ۵۰۰ نورو کالو پورې لا هم منځته رانغی، مګر د صنعتي انقلاب لومړني ګامونه په ۱۲۰۰ کلونو کې اخیستل سوي وه.

د تجارت او فابریکه یي تولید manufacturing انکشاف ډېر مهم سیاسي نتایج رامنځته کړل. لومړی، یوه غني او زوروره تجارتي طبقه (آزاد ښاري اوسېدونکي) راپیدا سوه چې د تولید او تجارت ورځ تر بلې

پراخېدونکي ښاري مرکزونه ئې په خپل کنټرول کي راوستل. دوهم، دا آزادښاري اوسېدونکي (چي برګر burgher بلل کېدل) د مسلط سياسي سيستم څخه ناراضه ځکه وه چي دوی د خپلو فابريکو له پاره په زياته پيمانه اومه مواد او د خپلو توليداتو لپاره بازارونو ته اړتيا درلوده. دريم، آزاد ښاري اوسېدونکو (برګر burghers) د خپلو تجارتي اسانتياوو له پاره د لويو سياسي واحدونو لپاره هلي ځلي کولې، نو پيسه داره طبقه (يعني هغه خلک چي پيسې ئې په لاس کي وې، نه مځکي) د پاچهانو، چي د فيوډالانو د کنټرول لپاره ئې هر وخت کوښښ کاوه، طبيعي ملګرې وه. د برګر طبقې هغه څه درلودل چي پاچهانو اړتيا ورته درلوده. پاچهانو کولای سوای په قانوني توګه فيوډالان له منځه يوسي؛ د برګر طبقې کولای سوای پاچهانو ته د عسکرو د استخدام او وسلو د رانيولو له پاره پيسې ورکړي څو پاچهان د اشرافو په ماتولو کي بريالي سي. د دې اتحاد په نتيجه کي اوسنی عصري دولت منځته راغی.

لنډه دا چي، په نظامي تکنالوجي کي تغيراتو د فيوډالي جاګيرداري سيستم د يو دفاعي واحد په توګه بې اهميته کړ، او په توليد او تجارت کی تغيراتو د فيوډالي جاګيردارۍ سيستم د يو اقتصادي واحد په توګه بې اهميته کړ.

## د جهان شموله قدرت زوال:

په داسي وخت کي چي فيوډالي سيستم مخ پر زوال وو، د پاچهانو ورځ په ورځ زياتېدونکي قدرت بيا د پاپ او مقدس روم د امپراتور د جهان شموله قدرت ادعاګانو ته چلينج ورکړ. کلتوري او روښن فکري ريفورم چي رنسانس (تقريباً ۱۶۵۰-۱۳۵۰ پوري) بلل کېږي، د پاپ د قدرت زوال او د شاهي قدرت د پراختيا سره مرسته وکړه. په دغه دوران

کي د رامینځته سوو مفاهیمو، لکه علمي تحقیق او شخصي آزادي، د کلیسا قدرت ته سختي ضربې ور کړې.

یوه مهمه پایله ئې د پروتستانت ریفورم Protestant Reformation وو. د رنسانس د افکارو تر اغېزي لاندي مارتین لوتر Martin Luther کاتولیک کلیسا د خدای او خلګو تر منځ د لازمي منځګړي په توګه رد کړه. په کال ۱۵۱۷ کي لوتر خپله عقیده اعلان کړه چي هر څوک کولای سي د خدای سره په انفرادي توګه اړیکی ولري (یعني د کلیسا منځګړیتوب ته اړتیا نسته.) د څو لسیزو په دوران کي د لوېدیځي اروپا څلورمه برخه پروتستانت سول. د ریفورم سره سیاسي-مذهبي مبارزې هم د اروپا په نورو سیمو کي د مذهبي آزادۍ په نامه پیل سوې.

## د نړیوال سیستم ظهور

(شلمه پېړۍ)

**The Evolving World System:**
**The Twentieth Century**

په شلمه پېړۍ کي ډېر مهم او چټک جهاني تغیرات منځته راغلل چي تر نن ورځې پوري دوام لري. د شلمي پېړۍ په پیل کي د نړۍ په ډېرو هیوادو کي پاچهانو حکمروایي کوله؛ کوم مهم نړیوال سازمان وجود نه درلود؛ او په نړۍ کي ۱,۵ بیلیونه خلګ اوسېدل. کله چي شلمه پېړۍ پای ته ورسېدله، په ډېرو هیوادو کي انتخابي حکومتونه منځته راغلي وه؛ ملګري ملتونو UN او نورو بین المللي سازمانونو برجسته مقامونه درلودل؛ او د نړۍ نفوس و۶ بلیونه یعني څلور واره ډېر سوي وو. دا ټول یوازي په یوه پېړۍ کي پېښ سول، چي د ۳۵۰۰ کالو ثبت سوي بشري تاریخ تقریباً په سل کي ۳ په بر کي نیسي.

د دې تغیراتو ډېره برخه د تکنالوجیکي او علمي کشفیاتو د ورځ په ورځ زیاتېدونکي سرعت سره اړه لري. په شلمه پېړۍ کي تلویزیون، کمپیوټر، انټرنیټ، هستوی انرژي، هوائي او فضایي مسافرت او داسي نور په زړه پوري کشفیات منځته راغلل. تکنالوجي پرابلمونه هم حلوي او هم پرابلمونه منځته راوړي. د طب په برخه کي پېشرفتونه، د مثال په توګه، دا معنی لري چي ډېر کوچنیان ژوندي پاتېږي او خلک زیات ژوند کوي، مګر د دې تغیراتو په نتیجه کي د نړۍ نفوس په بېساري توګه پړسېدلی دئ. د نوي ټکنالوجي ګانو له برکته موږ اوس کولای سو نوې معدني مواد راوباسو، په تولید ئې واړوو او د پرمختللي وسایلو په وسیله ئې تر مصرف کوونکو پوري ورسوو. دلته بیا هم موږ وینو چي د دې اقتصادي پرمختګ له امله د خلګو د ژوند سطحه لوړه سوې ده، مګر د هوا چټلي، کروي تودوخه global warming او داسي نور پرابلمونه هم منځته راغلي دي.

## د دوه قطبي سیستم صعود او نزول:

دوهمه عمومي جګړه (۱۹۴۵-۱۹۳۹) د بشریت له پاره یوه بېساري تراژیدي وه. مګر دوهمي عمومي جګړې پر اروپایي بنیاد ولاړ څو قطبي ساختمان هم رنګ کړ. په پایله کي ئې، ډېر ژر د شوروی اتحاد او امریکې د متحده ایالاتو تر کنټرول لاندي یو دوه قطبي سیستم منځته راغی. هغو کسانو چي د دې سترو قدرتونو تر منځ شدید خصومت لیدلی دئ، د دوه قطبي سیستم د له منځه تلو هیڅ پېش بیني ئې نه سوای کولای. مګر د دوه قطبي سیستم دوران لنډ وو. تدریجي زوال ئې تر یوې لسیزي وروسته پیل او په ۱۹۹۲ کي تاریخ ته وسپارل سو.

دوهمي عمومي جګړې د هغه وخت موجود عمده لوبغاړي له منځه یووړل. پر ځای ئې د امریکې د متحده ایالاتو نظامي او اقتصادي ستر قدرت superpower د یوه قطب د لیډر په توګه منځته راغی. شوروي

نه ده چې غربي کلتور ګواکي تر نورو لوړ دئ؛ بلکي تأثير ئې د لوېديځې اروپا او امريکې د سياسي او اقتصادي قوت له امله دئ. همدارنګه، د امتزاج په پروسه کي د غربي کلتور زياتوالی دا معنی هم نه لري چې دا جريان يو طرفه دئ. امريکايي کلتور هم د ډېرو خارجي وارداتو څخه متأثر سوی دئ. د مکسيکو فهيتا [يو ډول غذا ده]، جاپاني سوشي [جاپاني غذا ده]، اروپايي ساکر [چې موږ يې فوټبال بولو] يو څومثالونه دي.

## ژبه:

د کلتوري تقارب يو مهم اړخ انګرېزي ژبه ده چې نن ورځ د بزنيس، ډيپلوماسی، مفاهمې او حتی د کلتور مشترکه ژبه ګرزېدلې ده. د افغانستان جمهور رئيس حامد کرزی او هم د ډېرو هيوادو ليډران او د بين المللي سازمانو مشران په انګرېزي ژبه خبري کوي. په رشتيا سره هم، د ملګرو ملتونو د عمومي منشي بان کي موون، چې د جنوبي کوريا تبعه دئ، په شمول، ډېرو ليډرانو انګرېزي ژبه په امريکايي پوهنتونو کي زده کړې يا پراخه کړې ده. يو څه په کراری سره، په تدريجي توګه انګرېزي ژبه د نړۍ و عامو خلګو ته ورغزېږي. په اروپا کي، د مثال په توګه، د ښوونځيو د شاګردانو په سلو کي ۸۹ انګرېزي ژبه زده کوي.

موډرن کميونيکېشن په نړۍ کي د انګرېزي ژبي د پراختيا يو بل فکتور دئ. سره له دې چې ګوګل Google په نژدې سلو ژبو باندي، و هغو کسانو ته چې انګرېزي ئې مورنۍ ژبه نه ده، د پلټني زمينه برابره کړې ده، مګر بيا هم په انټرنيت کي ډېر زيات موجود مواد په انګرېزي ژبه دي. لکه د يوه روسي ويب سايټ اداره کوونکی چې وايي: «د يوه روسي له پاره دا ډېره اسانه ده چې د روسي پرځای د داستايوفسکي د يوه اثر انګرېزي ترجمه له انټرنيټ څخه ډاون لوډ او په انګرېزي ژبه ئې ولولي». بزنيس او

تجارت هم دې ته اړتیا لري چی د انګرېزي ژبې د نړیوالي پراختیا له پاره کار وکړي. د نړۍ د اقتصادي قدرت په حیث د امریکې د متحده ایالاتو د موقف له امله په نړۍ کي دا ډېره عامه ده چي د بزنیس او تجارت ډېر زیات کسان انګرېزي ژبه زده کړي. د جاپان د حکومت په یوه خپاره سوي رپورټ کي ویل سوي دي چی: "په جهاني سویه لوړتیا او تفوق دا ایجابوي چي ټول جاپانیان د انګرېزي ژبي کاري پوهه لاسته راوړي". انګرېزي ژبه به نوره هم په نړۍ کي پسې پراخه ځکه سي چي د نړۍ په هر ګوټ کي زیات خلګ په دې عقیده دي چي د انګرېزي ژبي زده کړه د دوی د ماشومانو په آینده کي ګټوره اغېزه لري.

## استهلاکي تولیدات:

د مشهورو مصرفي مالونو تبادله د کلتورونو په نژدېوالي کی یو بل فکتور دئ. امریکایي فلمونه د نړۍ په ډېرو برخوکي شهرت لري. د امریکې د متحده ایالاتو د فلم جوړولو د صنعت له پاره په خارجي هیوادو کي د هغوی توزیع ډېره مهمه ده، ځکه چي د امریکې د فلم جوړوونکو شرکتونو د عاید په سلو۶۱ له خارجي هیوادو څخه راځي. په مقابل کي، خارجي فلمونه د امریکې د فلم د مارکېټ یوازي په سلو کي ۳ تشکیلوي. امریکایي ټلویزیوني پروګرامونه هم په خارجي هیوادو کي ډېر شهرت لري، مګر دا شهرت پر لږېدو روان دئ. کاوبای پتلون، همبرګر او کوکا کولا هم د نړۍ په ډېرو برخوکي ډېر عام سوي دي.

عمده او د ټینګار ټکی دا دئ چي، د کلتورونو په برخه کي یو ډېر مهم امتزاج منځ ته راغلی دئ. ښه دئ که بد، غربي، په تېره بیا امریکایي کلتور د دې جریان په مخ کي روان دئ. ډېره مهمه خبره دا ده چي د مشترک کلتور منبع دومره مهمه نه ده، بلکي د کلتوري امتزاج بالقوه

نتایج ډېر اهمیت لري. ځیني تحلیلګران دې کلتوري امتزاج ته د یو مثبت قوت په توګه ښه راغلې وایي او په دې باور دي چې دا کار به خلګ، او بالاخره، سیاسي واحدونه سره نژدې کړي. نور تحلیلګران بیا ټرانسنېشنل transnational کلتور د مطلوب تنوع له پاره یو خطر بولي. [د دې خبرې معنی دا ده چې ځیني خلګ غواړي خپل کلتور وساتي او کلتوري امتزاج د دوی کلتور ته خطر پېښوي.]

## د اقتصادي ګلوبلایزېشن په باب اندېښنې:

د اقتصادي ګلوبلایزېشن د تأثیراتو تحلیل ډېر پرله پېچلی کار دئ چې په ۱۱ فصل کې به په تفصیل خبرې پر وسي، مګر یو څه بیان ئې دلته هم لازم دئ. یوه اندېښنه له دې استدلال سره تړاو لري چې د ملتونو نېکمرغي prosperity په مستقیمه توګه د سولې سره تړې او یا ئې هم په غیر مستقیمه توګه د ډیموکراسۍ له لارې له سولې سره تړي. که څه هم چې د دې استدلال د ملاتړ له پاره ډېر شواهد وجود لري، مګر داسې تحلیلګران سته چې و دې استدلال ته د شک په ستر ګه ګوري.

بله اندېښنه د اقتصادي ګلوبلایزېشن په باب دا ده چې لاسته راغلې ګټې څرنګه وېشل کېږي. د انتقاد کوونکو اساسي استدلال دا دئ چې د اقتصادي ګلوبلایزېشن د ګټو توزیع مساویانه څه چې مساویانه ته نژدې هم نه ده. بډایان ډېره ګټه ځني اخلي او غریبانو ته لږ او یا هیڅ ګټه نه رسېږي، حتی ځیني وخت په نسبي توګه تاوان هم وررسېږي. د ۱۹۴۵ کال راهیسې د نړۍ نېکمرغي په مجموع کې لوړه سوې ده. د امریکې د متحده ایالاتو په مخکښې له اقتصادي پلوه د پرمختللو هیوادونو اقتصادي حالت په بېساري توګه ښه سوی دئ. له اقتصادي پلوه لږ پرمختللي هیوادونو کې هم اقتصادي حالت په عمومي صورت ښه سوی

دئ. د دې هیوادونو په ډله کې ځینو ئې لوړ ګامونه اخیستي دي او د ځینو چې اقتصادي حالت ښه هم نه دئ بیا هم په عمومي توګه د پخوا په تناسب دومره غریبان نه دي. سره له دې، اوس هم په نړۍ کې یو بلیون خلګ په بېساري غربت کې ژوند کوي. سربېره پر دې، د اقتصادي پلوه پرمختللو او لږ پرمختللو هیوادونو تر منځ د سړي پر سر د ثروت per capita wealth خلا زیاته سوې ده. په ۱۹۸۰ع کال کې، په لږ پرمختللو هیوادونو کې د سړي پر سر د یوه ډالر تولید سوي ثروت په مقابل کې پرمختللو هیوادونو د سړي پر سر ۱۴ ډالره ثروت تولید کړی وو (۱:۱۴ خلا). په ۲۰۰۷ کال کې دا خلا ۱:۲۴ ته لوړه سوه. [یعنی په لږ پرمختللو هیوادونو کې د سړي پر سر د یوه ډالر تولید سوي ثروت په مقابل کې پرمختللو هیوادونو د سړي پر سر ۲۴ ډالره ثروت تولید کړي وو].

په افراطي اړخ کې، ځیني په دې عقیده دي چې غربت ځکه وجود لري او د ثروت خلا ځکه ډېره سوې ده چې ګلوبلایزېشن د اقتصادي پلوه د پرمختللو هیوادونو په لاس کې یوه وسیله ده چې لږ پرمختللي هیوادونه په استثماروي. د اقتصادي پلوه پرمختللي هیوادونه پر لږ پرمختللو هیوادونو زور اچوي چې خپل اقتصاد د پرمختللو هیوادونو د نفوذ او کنټرول له پاره پرانیزي. بله مناقشه دا ده چې حتی د اقتصادي پلوه پرمختللو هیوادونو په دننه کې هم ثروتمندان د ګلوبلایزېشن څخه په استفاده کولو سره خپل ثروت نور هم پسي زیاتوی. هغه کسان چې ګلوبلایزېشن ته د غریبو هیوادونو او په غریبو هیوادونو کې دننه د غریبانو د استثمارله لاري د بډایانو د لا بډای کېدلو د یوې پروسې په سترګه ګوري، په نړیوال اقتصاد او پالیسۍ کې د بنیادي تغیر غوښتونکي دی. یو لږ څه بې ازاره نظر بیا دا دئ چې د ثروت د خلا د زیاتېدلو علتونه په لږ پرمختللو هیوادونو کې په نړیوال بازار کې د رقابت کولو له پاره کافي

اقتصادي شرايط وجود نه لري. د دې نظرئې له مخې، د حل لار دا ده چې د ګلوبلايزېشن په پروسه کې داسې ريفورم راسي چې د لږ پرمختللو هيوادونو سره اقتصادي مرستې وسي.

## د کلتوري ګلوبلايزېشن په باب اندېښنې:

د نړۍ د بېلابېلو سيمو خلګ د کلتوري امتزاج په هکله څه فکر کوي؟ د دې پوښتنې جواب څو برخې لري. زيات خلګ د خارجي کلتور موجوديت ته ښه راغلې وايي. يوې نړيوالې سروې ښودلې ده چې په ۴۵ هيوادو کې په سلو کې ۷۷ خلګو د خارجي توليداتو موجوديت ښه بللی وو، او په سلو کې ۶۱ کسانو خارجي فلمونه او د ساعت تيري ميډيا ښه بللې وه. مګر لږ خلګ د خارجي کلتور واردولو ته مثبت نظر لري او ډېر خلګ د دې مسئلې په هکله متضاد افکار څرګندوي. د نړۍ اکثريت خلګ په عين وخت کې له يوې خوا کلتوري واردات ښه بولي، او له بلې خوا بيا وايي چې د دوی د ژوند لار [طرز] تر تهديد لاندې دئ چې بايد د خارجي نفوذ څخه وساتل سي. د کلتوري وارداتو په هکله د خلګو عمومي عکس العمل تر يوه حده ډيموګرافيک [د ټولنپوهنې هغه مشخصات چې خلګ د سن، جنس، عايد او نورو شيانو پر اساس طبقه بندي کوي] دئ. سن ډېر رول لوبوي، په عمر پاخه خلګ عموماً تر ځوانانو د کلتوري وارداتو څخه کرکه څرګندوي. د لوېديځې افريقا د سينګال په هيواد کې، د مثال په توګه، په سلو کی ۷۶ ځوانانو (د ۱۸ څخه تر ۲۹ کلن پوري) کلتوري واردات ښه وبلل.

د کلتوري وارداتو په باب بله خبره دا ده چې ځينې وخت حکومتونه د نېشنليستي احساساتو د تحريک او يا د نېشنليستي ګروپونو د فشار له امله پر کلتوري وارداتو بنديزونه لګوي. فرانسه او چين دوه ښه مثالونه دي. لږ تر لږه د فرانسې په سلو کی ۹۰ خلګ مشهورو کلتوري وارداتو ته

په ښه سترګه ګوري او په دې عقيده دي چي د دوی ماشومان بايد انګرېزي ژبه زده کړي. مګر بيا هم د فرانسې حکومت د خارجي کلتور د تجاوز په مقابل کي کلک مقاومت کوي. د فرانسې پخواني جمهور رئيس ژاک شيراک اخطار ورکړ چي د انګرېزي ژبي پراختيا "د بشريت له پاره لوی خطر دئ". د فرانسې حکومت ټينګار کوي چي د زده کړي په مؤسساتو، بزنيس او حکومتي ادارو کي دي يوازي د فرانسوي ژبي څخه کار اخيستل کېږي. همدارنګه حکومت پر تفريحي صنعت زور اچوي چي د فرانسوي ژبي فلمونه او موسيقي خلګو ته وړاندي کړي. مګر دې کارو چنداني ګټه نه ده کړې او خلګ اوس هم د انګرېزی ژبي له فلمونو سره علاقه ښيي.

د فرانسويانو په شان، په سلو کي ۹۰ چينايان هم کلتوري وارداتو ته په ښه سترګه ګوري. مګر د کلتوري وارداتو مخالفين د عنعنوي چينايي کلتور د له منځه تللو په هکله ډېر اندېښمن دي. د ۲۰۰۶ کال په پای کي د چين يوه حکومتي ويب سايټ په چين کي د کريسميس د مشهوره کېدلو په باب خبرداری ورکړ او له خلګو څخه ئې وغوښتل چي د کلتوري درانه خوبه راويښ سي او پر خپل عنعنوي چينايي کلتور لاسونه ټينګ کړي. مګر ټول خلګ ورسره موافق نه وه. په يوه چينايي بلاګ کي يو چا ليکلي وه چي: "د عنعنوی چينايي کلتور له پاره به ښايي دا بده نه وي چي د غربي کلتور تر نفوذ لاندي يو څه تغير پکښې راسي. د بېلابېلو کلتورونو تر منځ بايد رقابت موجود وي".

## ترانسنېشنليزم (مافوق ملتيت)

**Transnationalism**

يو په بل سره تړلي اقتصاد، پراخ او عام کميونيکېشن، چټک

مسافرت او نورو مدړنو فکتورونو په نړۍ کي د خلګو ژوند سره مښلولي او یو بل راز پروسه ئې منځ ته راوړې ده چې ترانسنېشنلیزم transnationalism ئې بولي چې د هغه په نتیجه کي په لوړه کچه مافوق ملتي تماسونو پر مختګ کړی دئ.

ټرانسنیشنلیزم هم د عمل او هم د هوویت عناصر په ځان کي لري. د عمل په برخه کي، ټرانسنیشنلیزم یوه پروسه ده چې افراد د خپلو دولتي سرحداتو په هاخوا د نورو افرادو سره یو ځای د یوه ګډ هدف له پاره کار کوي او د هویت په برخه کي، د نېشنلیزم پر ځای د سیاسي هویت بدیل alternative وړاندي کوي. د دې مفهوم معنی دا ده چې موږ ځرنګه خپل ځانونه د کمونیزم په شان آیډالوجۍ سره، د اسلام په شان مذهب سره، او یا د یوروپ په شان سیمي سره مښلووو. د ټرانسنیشنلیزم د آیندې په باب به وروسته وړغیږو، مګر دا یوه مهمه خبره باید وکو چې ډېر خلګ به تر نژدې راتلونکي پوری د نېشنلیزم څخه لاس وانخلي. دا هم باید په پام کي ولرو چې تغیر راروان دئ، او لږ.ترلږه ځینو خلګو خپل سیاسي هویت د نېشنلیستي هویت څخه بېل کړی دئ او ځانو ته ئې نور هویتونه انتخاب کړي دي. د مثال په توګه، د اروپایي اتحادئې ځیني تبعه ځانونه د فرانسوي یا جرمني پر ځای اروپایان بولي.

## ترانسنېشنلیستي سازمانونه:

د ټرانسنیشنلیزم د زیاتېدونکي قوت یوه نښانه د ترانسنېشنلیستي سازمانونو، چې غیر دولتي سازمانونه nongovernmental organizations (NGO) بلل کېږي، د شمېر او فعالیتونو زیاتوالی دئ. دا سازمانونه تر ملي سرحداتو په هاخوا فعالیت کوي، غړي ئې خصوصي افراد وي، او هیڅ یوه دولت ته په جواب ورکولو مکلف نه دي.

## دNGO ګانو انکشاف:

د ۱۹۰۰ او ۲۰۰۵ کلونو تر منځ، د NGO ګانو شمېر د ۶۹ څخه و۱۱۴۰۰ ته ورسېدئ. دې ته مو باید پام وي چې د انکشاف ډېره زیاته برخه د ۱۹۷۵ کال راوروسته، یعني د ګلوبلایزېشن د چټک انکشاف سره موازي، سر ته رسېدلې ده. د دې NGO ګانوله جملې څخه ۲۰۰۰ئې د ملګرو ملتونو سره مشاورتي موقف لري. دا ګروپونه بېلابېل مسایل په بر کې نیسي؛ سوله، بشري حقوق او چاپېریال environment ئې یوازي څومثالونه دي.

د NGO ګانو زیاتېدونکی شمېر او د فعالیتونو تنوع په څو لارو باندي د ګلوبلایزېشن اثر ښیي. لومړی، له ډېرو خلکو سره دا مفکوره پیدا سوې ده چې ډېر مسایل په کلي یا جزئي توګه ترانسنېشنلیستي بڼه لري. د مثال په توګه، که یو هیواد اتموسفېر[د مځکي ګردچاپېره فضا] ته داسي ګازونه ورایله کوي چې اتموسفېر د اوزون طبقې ته ضرر رسوي، نو دا کار نه یوازي په هماغه هیواد کي بلکي په ټوله نړۍ کي د پوست د سرطان د زیاتېدلو سبب ګرزي. دوهم، NGO ګانو ځکه وده کړې او شمېر ئې زیات سوی دئ چې د حمل ونقل او کمیونیکېشن په برخه کي بېساري پرمختګ ترانسنېشنلtransnational تماسونه اسانه، چټک او ارزانه کړي دي. دریم، د NGO ګانو وده او پرمختګ د اوسني سیاسي سازمانونو سره، چې د یوه ټاکلی دولت په کنټرول کي وي، د خلګو دلسردي او بې علاقه ګي ښیي. په نتیجه کي، خلګ نوي لاري چاري پلټي چې تر سرحدونو په هاخوا یو له بله سره یو ځای کار او فعالیت وکړي.

## د NGO ګانو فعالیتونه:

په اصل کي NGO ګاني داسی سازمان سوي ګروپونه دي چې په

یوازي سر او یا د نورو ګروپونو سره په ګډه خپل اهداف مخې ته بیایي. د چاپېریالي سیاست environmental politics په برخه کې، د مثال په توګه، د ځمکې د کرې بین المللي ملګري Friends of the Earth International په شان یو سازمان وجود لري. دا سازمان ، چې مرکز ئې په هالنډ کې دئ، د چاپېریال د ساتنې لپاره د ترانسنېشنلیستي هڅو د انسجام چارې پر غاړه لري، او همدارنګه د دې سازمان د ۵۰۰۰ غړو تر منځ چې په ۷۰ هیوادونو کې سره تیت دي ارتباط ټینګوي. د نورو داخلي مشترک المنافع ګروپونوinterest groups په شان، NGO ګانې هم خپل اهداف خلګو ته د معلوماتو او استدلال د وړاندې کولو، او په ملي او بین الدولتي سازمانونو کې د فعالیت له لارې مخ ته بیایي. (بین الدولتي سازمانونه (intergovernmental organizations (IGO هغه بین المللي سازمانونه دي چې غړي یې دولتونه تشکیلوي).

NGO ګانې د ملګرو ملتونو او نورو بین الدولتي سازمانونو د پالیسي جوړولو په پروسه کې مهم رول لوبوي چې د وخت په تېرېدو سره ئې اړیکې نورې هم پسې پراخې سوې دي. په ۱۹۴۸ کال کې ۴۰ دانې NGO ګانې، چې د ملګروملتونو د مؤسسې سره ئې مشاورتي موقف درلود، موجودې وې. دا شمېره په ۱۹۹۶ کې تر ۱۰۰۰واوښتل او په ۲۰۰۸ کې ۳۱۸۷ ته ورسېده. NGO ګانې همدارنګه په هغو بین المللي کنفرانسونو کې چې د ملګرو ملتونو او نورو بین الدولتي سازمانونو له خوا جوړېږي هم فعاله ونډه لري.

## د NGO ګانو تأثیر:

پر پالیسی جوړولو باندی د NGO ګانو د تأثیر اندازه کول او معلومول ګران کار دئ، خو داسي نښې نښانې موجودې دي چې NGO

ګاني ورځ په ورځ د مشروع سازمانونو په توګه په رسمیت پېژندل کېږي او د پالیسي جوړولو په پروسه کې ئې رول مخ پر زیاتېدو دئ. یوه نښه ئې دا ده چې مالي منابع ئې مخ پر زیاتېدو دي. هغه مرستې چې د NGO ګانوله لارې و لږ پرمختللو هیوادو ته ورکول کېږی په ۱۹۷۰کال کې یو بلیون ډالره وې، اوس دا ډول مرستې ۱۰ بلیونه ډالرو ته رسېږي. NGO ګانې زیات مالي منابع د خپلو غړو څخه لاسته راوړي. په دې وروستیو کلونو کې ډېر حکومتونه او بین الدولتي سازمانونه خپلې مرستې د NGO ګانوله لارې سرته رسوي. د مثال په توګه، د امریکې د متحده ایالاتو د بین المللي انکشاف ایجنسي (USAID) د خپلو مرستو یوه برخه د NGO ګانوله لارې و لږ پرمختللو هیوادو ته ورکوي.

## منطقوي ټرانسنیشنلیزم:

اروپایی اتحادیه (EU) د منطقوي سازمان یو مثال ګڼل کېږي. اروپایي اتحادیه چې تر دوهمې عمومي جګړې وروسته راوزېږېدل اوس ئې د یو پرمختللي اقتصادي اتحاد په توګه تکامل موندلی دئ. په دې پسې سیاسي اتحاد، که څه هم سوکه او کرار دئ، ورته را روان دئ. دې تغیراتو د سیاسي هویت د ځرګندولو په برخه کی هم پر اروپایانو اثر ښندلی دئ. که څه هم په دې کې شک نسته چې نېشنلیزم اوس هم په اروپا کې مسلط دئ، د نورو هویتونو احساس هم په ځینو خلګو کې راپیدا سوی دئ. په سلو کې ۴۰ اروپایان ځانونه د خپل هیواد تبعه بولي. په سلو کې ۴۴ اروپایان ځانونه لومړی د خپل هیواد تبعه او دوهم اروپایان بولي. په سلو کې د ۸ کسانو سره تر ملت د اروپایي والي احساس ډېر دئ او په سلو کې ۴ تنه ځانونه په ځانګړي توګه اروپایان بولي. په دې توګه، سره له دې چې نېشنلیزم پوره مسلط دئ، د اروپایي اتحادئې په سلو کې ۱۲ له

عنعنوي نېشنلیستي هویت څخه اروپايي هویت ته تغیر موندلی دئ. د نړۍ په هیڅ برخه کي د اروپا اتحادئې ته ورته د اقتصادي او سیاسي اتحاد سازمان وجود نه لري. ځکه نو، نن ورځ د منطقوي سیاسي هویت احساس یوازي په اروپائې اتحادیه کي لیدل کېږي. مګر په ۱۹۵۰ کلونو کي، د اروپا مشترک بازار Europe's Common Market نوی پیل سوی او یوازي په تجارت پوري محدود وو. همدا مشترک بازار وو چي اروپایي اتحادئې ته ئې تکامل وموند.

## کلتوري ټرانسنیشنلیزم:

زیاتو څېړنو دا ښودلې ده چي ګډ کلتوري بلدیت [یعني چي خلګ یو د بل له کلتور سره اشنا سي] د خلګو تر منځ د بېري او شک په لږولو کي مرسته کوي. ځکه نو د بېلابېلو کلتورونو تماس چي د ګلوبلایزېشن په نتیجه کي منځ ته راځي، په نړۍ کي د تصادماتو د لږېدلو امیدواري رامنځ ته کوي.

یو تاریک نظر دا دئ چي کلتوري ټرانسنیشنلیزم د تمدنونو تصادم clash of civilization منځته راوړي. د دې تیورۍ مشهور ملاتړ کوونکی ساموېل هنټینګټن Samuel Huntington دئ [چي د «تمدنونو تصادم» په نوم اثر ئې لیکلی دئ.] د ډېرو تحلیلګرانو په شان، هنټینګټن په دې عقیده دئ چي نېشنلیزم به «د هویت د یوې منبع په توګه ... کمزوری سي.» د ده پېشبیني دا ده چي نوي کلتوري هویتونه به رامنځته سي چي «دا خلا به ډکه کړي،» او هیوادونه به ځانونه په اوو یا اتو کلتوري بلاکونو کي سره تنظیم کړي. دا به «غربي، کانفیوشسي Confucian، جاپاني، اسلامي، هیندویي، ارتودوکس سلاویکي، لاتین امریکایي، او ښایي افریقایي» بلاکونه په بر کي ونیسي. هنټینګټن پېشبیني کوي چي دا

بلاکونه به «د تصادماتو اساسي سرچینه» وګرزي.

اکثره غربي پوهان د هنټیګټن تیوري ردوي. مګر بیا هم، داسي ښکاري لکه د نړۍ په نورو برخو کي چي د منلو وړ وي. په مسلمانانو کي پوره اندازه داسي بدګوماني موجوده ده چي د دوی د دین او کلتور د له منځه وړلوله پاره منظمي هڅي رواني دي. دې مهم ټکي ته باید توجه وکړو چي یوازي مسلمانان نه بلکي نور کسان هم سته چي د اسلام پر ضد اعمالو ته ئې پام اووښتی دئ. تر مړیني لږ څه مخکي د امریکې پخواني جمهور رئیس، ریچارډ نیکسن Richard Nixon د بوسنیا د مسلمانانو د قتل عام د مخنیوی له پاره د غرب د اوږده ځنډ په باب لیکی: «دا یو بدخونده مګر انکارناپذیره حقیقت دئ چي که د سراجیوو Sarajevo [د بوسنیا پایتخت] زیات اکثریت مسلمانان نه بلکي عیسویان یا یهودیان وای، نو متمدني نړۍ به دې ډول وحشت ته اجازه نه وای ورکړې».

د عیسویت او اسلام تر منځ اختلافات او ټکرونه تر زرو کالو زیات تاریخ لري او د ځینو مسلمانانو له پاره د امریکې په مشري د غرب اوسنۍ پالیسي د همدې ټکرونو ادامه ده. مسلمانان، د نورو مسایلو تر څنګ، د امریکې او یوروپ د پالیسیو و لاندي ټکو ته ګوته نیولای سي.

- د سربیا د عیسویانو له خوا د بوسنیا د مسلمانانو د قتل عام پر وخت هیڅ نه کول.
- په اروپایي اتحادیه کي، چي اکثریت ئې عیسویان دي، د اسلامي ترکیې نه شاملول.
- د عراق او ایران د هستوی وسلو د لاسته راوړلو سره ضدیت کول او د اسرائیلو پر هغې سترګي پټول.
- پر عراق او افغانستان یرغل او په دواړوهیوادو کي د غربي نظامي قواوو موجودیت.

- پر روسيې باندي، چې اکثريت ئې عيسويان دي او د چيچنيا پر مسلمانو باندي ظلم کوي مګر اقتصادي تعزيرات نه پر وضع کېږي.
- د اسرائيلو ملاتړ.

دا چې دا ډول اعمال د اسلام پر ضد د تعصب او يالړترلړه د کلتوری بې تفاوتۍ انعکاس دئ کنه بله خبره ده، خو دا ډېره مهمه ده چې د ډېرو مسلمانانو په نظر پورته بيان سوي اعمال حقيقت لري. يوه سروې، چې د اسيا، افريقا او منځني ختيځ په ۱۴ اسلامي هيوادو کي سر ته رسېدلې ده، دا ښودلې ده چې تر نيمايي زيات خلګ داسي احساس کوي چې د دوی مذهب له خطر سره مخامخ دئ.

## ترانسنېشنل مذهب:

د نړۍ اکثره لوی مذهبونه يو ډېر قوي ترانسنېشنليستي [مافوق ملتي] عنصر له ځان سره لري. دا عنصر په خاصه توګه هغه وخت قوت مومي چې مذهب، کوم چې د روحاني هويت اساس تشکيلوي، د سياسي هويت سرچينه وګرزي. کوم وخت چې مذهبي او سياسي هويت يو له بله سره ونغښتل سي، د هغه مذهب پېروان ښايي يو لړ سياسي اعمال سر ته ورسوي. يو له هغو اعمالو څخه به دا وي چې د هيواد قوانين او خارجي پاليسي له خپلو مذهبي ارزښتونو سره برابره کړي. بل دا چې په نورو هيوادونو کي د خپلو هم مذهبه خلګو د غوښتنو سياسي ملاتړ وکړي. د ملاتړ د دې احساس له امله، د مثال په توګه، د ټولي نړۍ يهوديان ښايي د اسرائيلو دفاع وکړي او مسلمانان بيا ښايي هر چيرته چې وي د فلسطين دفاع وکړي. همدا د مذهب دليل دئ چې اسامه بن لادن، چې د سعوي عرب دئ، وکولای سوای د امريکې د متحده ايالاتو او يورپ په شمول، د

مصر، پاکستان، چیچنیا او نورو هیوادونو مسلمانان د القاعدې له پاره جلب او استخدام کړي.

## مذهب او نړیوال سیاست:

د بین المللي روابطو یو محقق موږ ته خبرداری راکوي چې: "که تاسي داسي فکر کوئ چې مذهب په نړیوال سیاست کي بې طرفانه رول لوبوي، نو تاسي په ستر گو سم نه وینئ". دا ډېره هوښیاره مشوره ده، ځکه چي مذهب په نړیوال سیاست کي زیات رول لري. زیات وخت، مذهب د سولي، عدالت او بشریت یو قوت دئ. مگر دا خبره هم رشتیا ده چي مذهب له ډېر وخت راهیسي د خونړیو جگړو، ټکرونو او سیاسي تشدد یو فکتور وو او دئ. د مثال په توگه، مذهب د اسرائیلو او عربو د اوږدې شخړي یو عنصر تشکیلوي. همدارنگه د پاکستان او هندوستان وېش پر مذهب ولاړ دئ. دواړه هیوادونه زروي وسلې لري چي د ځینو کسانوپه عقیده د نړۍ ډېر خطرناک حالت پکښې راتلای سي.

مذهب د یوه هیواد په دننه کي هم د شخړو د علت او یا د شخړو د تشدید رول لوبولای سي. یوگوسلاویه تر یوه حده پر مذهبي اساس، پر کروټانو، مسلمانانو او سربیانو ووېشل سوه. په دې نژدې کلونو کي، مذهب په کوسوو کي د سربي او البانوي مسلمانانو په خونړي کلتوري وېش کي هم رول لوبولی دئ. د یوه مذهب په دننه کي هم تصادم منځته راتلای سي، چي په عراق کي د سنیانو او شیعه گانو، او حتی په خپله د شیعه گانو، تر منځ خونړۍ جگړې ئې مثالونه دي.

## د مذهبي بنسټ پالني قوت:

د مذهب یو اړخ چي د نړۍ په ډېرو برخو کي ئې زور اخیستی دئ

هغه بنسټ پالنه [fundamentalism] ده. رشتیا هم، یوې څېړني ښودلې ده چې: "نړۍ په مجموع کي تر پخوا زیات د عنعنوي مذهبي افکارو لرونکي خلګ لري او لا نور هم د نړۍ د نفوسو په تناسب مخ پر زیاتېدو دي". په دې ځاي کي، بنسټ پال/عنعنه پال هغه چا ته ویل کېږي چي محافظه کاره مذهبي اررښتونه لري او غواړي چي خپل دغه ارزښتونه د هیواد په ملي قانون کي ځای کړي. [د دې معنی دا ده چي هر مذهبي سړی بنسټ پال نه دئ.] ځیني بنسټ پال خپل سیاسي هویت هم په مذهب سره څرګندوي نه په خپل وطن یا دولت سره. دا ډول لید perspective تر ملي سرحداتو په هاخوا د هم مذهبو خلګو تر منځ همکاري منځ ته راوړي؛ او داسي معنی هم لري چي بنسټ پالونکي د سرحداتو په دننه کي هم د نورو مذهبونو د پېروانو د آزادۍ مخه نیسي.

پر دې خبره ډېر بحثونه روان دي چي آیا په نړۍ کي د بنسټ پالني ډېرښت د مجردو پېښو یوه سلسله ده او که یو پراخ جهاني تمایل دئ. هغه کسان چي د بنسټ پالني پراختیا یو جهاني تمایل بولي په دې عقیده دي چي، تر یوه حده پوري، د مذهبي سیاسي جنجالونو زیاتوب د کلتوري امتزاج په مقابل کي پر مقاومت ولاړ دئ. یعني بنسټ پال/عنعنه پال په دې فکر دي چي کلتوري امتزاج هغه ارزښتونه چي د دوی د مذهب اساس پر ولاړ دئ له منځه وړي. دا ډول احساس په خلګو کي د دوی مذهبي هویت ته پاملرنه او د خپلو هم مذهبو خلګو سره تر ملي سرحدونو په هاخوا د همکارۍ روحیه زیاتوي. دا احساس په غریبو هیوادو کي زیات دئ مګر په بډایو هیوادو کي ئې هم اغېزې ښکاره دي. په نړیوال سیاست کي د بنسټ پالني د پراختیا موضوع ځکه د اهمیت وړ ده چي سیاسي محافظه کاري political conservatism، مذهبي بنسټ پالنه او جدي نېشنلیزم په بېلابېلو لارو یو په بل کي سره ګډېږي.

## اسلام او نړۍ:

اسلام د وحدانیت یو مذهب دئ چي محمد صلی الله علیه وسلم ئې اساس کېښېښود. د اسلام لغت و خدای (الله) ته د «تسلیم» معنی لري او مسلمان یعني «هغه څوک چي تسلیم وي».

زموږ دلچسپي دلته په سیاست کي د مسلمانانو لخوا د اسلام د په کار اچولو سره ده. د اسلام یو عنعنوي مفهموم د امت ummah مفکوره ده چي مطلب ئې یوه داسي ټولنه ده چي معنوي، کلتوري او سیاسي وحدت ولري. محمد صلی الله علیه وسلم د امت لومړنی لیډر وو.

د اسلام سیاسي عواقب ځکه مهم دي چي په نړۍ کي تر یو بیلیون زیات مسلمانان اوسېږي او په ډېرو هیوادونو کي اکثریت تشکیلوي. سربېره پر دې، مسلمانان د فیلیپین په شان هیوادو کي چي اقلیت هم دي د یو مهم سیاسي قوت رول لوبوي. په مجموعي توګه، د هرو څلورو مسلمانانو څخه یو عرب دئ او په نړۍ کي تر ټولو لویه اسلامي کمیونیټي (۲۰۴میلیونه) په اندونیزیا کي پرته ده چي د دې هیواد د نفوسو په سلو کي ۸۸ جوړوي. [د اسلام او اسلامي امت په باب څرګندوني او نظریات د کتاب د لیکوال دي او ژباړونکی ئې یوازي د ترجمې مسئولیت پر غاړه لري].

## اسلام او نېشنلیزم:

د معاصر اسلام ځیني عناصر د واقعي امت له لاري د ټولو مسلمانانو وحدت غواړي. تر پېړیو خارجي استعمار وروسته، په اسلامي نړۍ کي، د ګابون Gabon څخه رانیولې بیا تر اندونیزیا پوري، د «اسلامي ویاړ» نهضت راپیل سو. د فلسطین د آزادۍ سازمان ملاتړ، د اسلامي مقدسو ځایونو د ساتني له پاره د هڅو انسجام او د پاکستان د زروي وسلو درلودلو

ملاتړ ددې نهضت یو ځو مثالونه دي. د عربي مسلمانانو تر منځ، د اسلام اشتراک په دوی کي د پان – عرب Pan-Arab احساسات راوزېږول. د پان – عرب احساس د منطقوي همکارۍ ځینی سازمانونه (لکه عرب لیګ (Arab Leage) منځته راوړل او حتی د عربي هیوادونو د یو ځای کېدلو هڅي هم رامنځته سولې. له دې امله، په اسلامي هیوادو کي اکثریت مسلمانان خپل هویت د خپل هیواد په پرتله په مذهب سره څرګندوي.

سره له دې هم، د دې امکان ډېر لږ دئ چي په نژدې راتلونکي کي به مسلمانان د یوه واحد امت په توګه سره متحد سي. د دې کار د مخنیوي یو فکتور نېشنلیزم دئ. ډېر اسلامي هیوادونه یو له بله جدي اختلافونه سره لري او د منطقوي نفوذ له پاره یو له بله سره په رقابت کي دي. د مثال په توګه، په ۱۹۸۰ کلونو کي عراق او ایران اته کاله سره وجنګېدل چي لږ تر لږه یو میلیون خلک پکښي مړه سول. د اسلامي هیوادونو تر منځ عمده ایتنیکي تفاوتونه وجود لري چي دا هم په خپل وار د نېشنلیزم په تقویه کي رول لري. د مثال په توګه، له کلتوري پلوه د اندونیزیا خلک د سورئې له خلګو سره ډېر تفاوت لري. حتی همسایه اسلامي هیوادونه هم ډېر سره بېل دي. اکثریت ایرانیان له ایتنیکي پلوه فارسیان Persian دي چي په فارسي ژبه خبري کوي. له بلي خوا، عراقیان بیا له ایتینیکي پلوه عرب دي او په عربي ژبه خبري کوي. سربېره پر دې، په ډېرو اسلامي هیوادو کي د وطن پرستۍ ویاړ ډېر قوت لري. دا نېشنلیزم هغه وخت ډېر زور اخلي چي له خارجي نفوذ سره مخامخ سي، لکه د امریکې متحده ایالاتو چي په عراق کي تر جنګ وروسته دا شی ولیدی.

## اسلام او غیر اسلامي نړۍ:

د مسلمانانو سیاسي تاریخ د خارجي نړۍ، په تېره بیا د غرب، په

وړاندي د دوی پر تفکر اثر کړی دئ. ډېر مسلمانان د امریکې متحده ایالاتوته د اروپايي – عیسویت د وارث په سترګه ګوري. [یعني هغه څه چي اروپایانو پخوا د اسلامي نړۍ سره کول اوس امریکا هغه کارونه کوي.] همدارنګه، مسلمانان فکر کوي چي د امریکې د متحده ایالاتو له خوا د اسرائیلو یو اړخیز ملاتړ د منځني ختیځ د کنټرول له پاره د غرب د تاریخي هڅو یوه برخه ده. یوه مصري تحلیلګر دا ټکی داسي په ګوته کړی دئ: "داسي یو ژور احساس [د مسلمانانو سره] موجود دئ چي د عربو سره زیږ.او د اسرائیلوسره نرم چلند روان دئ".

د نظر غوښتني احصائیې opinion polls هم د مسلمانانو تر منځ په پراخه پیمانه د دې ډول احساساتو موجودیت تصدیقوي. حتی د امریکې په رهبرۍ د عراق تر یرغل مخکي، د نهو اسلامي هیوادونو د یوې سروې له مخي، په سلو کي یوازي ۲۲ جواب ورکوونکو کسانو د امریکې متحده ایالاتو ته ښه نظر ښودلی وو. په سلو کي یوازي ۱۲ مسلمانانو فکر کاوه چي غربیان اسلامي ارښتونو ته احترام کوي. د اسرائیل او فلسطین د پوښتني په هکله، په سلو کي ۸۴ کسانو ویل چي د امریکې متحده ایالات اسرائیلو ته تر فلسطین ترجیح ورکوي. ښکاره خبره ده چي د عراق د ۲۰۰۳ کال تر یرغل وروسته د مسلمانانو نظر د غرب، په تېره بیا د متحده ایالاتو، په وړاندي نور هم منفي سو.

امریکایان هم د مسلمانانو په هکله منفي تصویر له ځان سره لري. د سروې له مخي، په سلو کي یوازي ۲۴ امریکایان د اسلامي هیوادونو په هکله ښه نظر لري، په داسي حال کي چي په سلو کی ۴۱ امریکایانو منفي نظر ښودلي دئ. سروې دا هم ښودلې ده چي زیات امریکایان اسلامي کلتور ته لږ احترام لري. په سلو کي ۶۶ امریکایان په دې نظر دي چي که مسلمانان غربي او امریکایي ارزښتونه ومني ژوند به ئې ښه سي.

همدارنګه، زيات امريکايان احساس کوي چې د مسلمانانو له خوا تر تهديد لاندي دي او زيات مسلمانان بيا احساس کوي چې د امريکايانو له خوا تر تهديد لاندي دي.

## د ټرانسنيشنليزم راتلونکې به څه وي؟

د دې اټکل چې ټرانسنيشنليزم به څومره پرمختګ وکړي، ناممکن کار دئ. دا له تصوره ليري نه ده چې تر نن يوه پېړۍ وروسته به انسانان يو مشترک کلتور او حتی يو مشترک حکومت ولري. مګر، بيا هم، دا خبره يقيني نه ده. ځيني کسان په دې کي شک لري چې د نن ورځې مافوق کلتوري تمايلات به آينده ته هم وراوږده سي. مثلاً ځيني تحليلګران په دې عقيده دي چې انګرېزي به د انټرنيټ د مشترکي ژبي په توګه خپل ځاي پرېږدي ځکه چې د نورو ژبو خلګ په زياتېدونکې توګه له انترنيټ څخه کار اخلي.

سربېره پر دې، نېشنليزم د ګلوبلايزېشن او ټرانسنيشنليزم په وړاندي نه ماتېدونکی خنډ دئ. د مثال په توګه، دا خبره تر يوه ځايه رشتيا ده چې د اروپايي اتحاديې په اړه د اروپايانو تر منځ ترانسنېشنليستي هويت رامنځته سوی دئ. مګر د دې نوي سياسي هويت خلګ يو کوچنی اقليت تشکيلوي او د هغو کسانو فيصدي ډېره زياته ده چې په اروپايي اتحاديه کي ژوند کوي او خپله عنعنوي وفاداري ئې اوس هم د خپل هيواد سره ساتلې ده.

# شپږم فصل

## قدرت، دولتداري او ملي دولت

عنعنوي ساختمان

**Power, Statecraft, and the National State: The Traditional Structure**

د خپل ټول اهمیت سره، بیا هم دولتونه هر وخت موجود نه وه. د تاریخ په بېلو مراحلو کي، انسانانو ځانونه په ښارو، ډلو، امپراطوریو او نورو سیاسی ساختارو کي سره منظم کړي دي. په حقیقت کي، د دولت مؤسسه په نسبي ډول یوه نوې سازماني اختراع ده او په منځنیو پېړیو کي سره راپیداسوې ده. د تکامل یوه مرحله یې هغه وخت منځته راغله چي اروپایي حکمرانانو د روم د امپراطورۍ او د پاپ د مذهبي واک څخه ځانونه رابېل کړل. دوهمه مرحله یې هغه وخت رامنځته سوله چي پاچهانو د خپلي حکمروایي په سیمه کي فیوډالي او نور واړه ملکیتونه تر خپل واک لاندي راوستل. زیاتره اوسني دولتونه تر ۱۰۰ کالو لږ عمر لري. دا خبره، چي دولت د اداري د یوه شکل په توګه له یو ځایه راپیل سوی دئ او زیاتره دولتونه نوي دي، ډېره مهمه ځکه ده چي د دې امکان رامنځته کېدای سي چي ښایي دولت د یو اداري سازمان په توګه د تل له پاره په آینده کي وجود ونه لري. که څه هم تصور یې ډېر ګران دئ، د سیاسي سازمان نور اشکال هم وجود لرلای سي. ملګري ملتونه او اروپایي اتحادیه

د دې ډول سازمانو مثالونه کېدای سي، چي په راتلونکي فصل کي به پر ورېغېږو.

## د دولت تعریف:

دولت د حکومت داری یو واحد دئ، چي پر یوه ټاکلي قلمرو او د هغه پر اوسېدونکو قانوني او حقوقي واک چلوي او کوم بل [تر ځان] لوړ مشروع خارجي واک په رسمیت نه پېژني. لکه په څلرم فصل کي چي د نېشنلیزم په بیان کي وویل سول، دولت همدارنګه د ډېرو خلکو د سیاسي هویت اساسي عنصر تشکیلوي. کله چي د المپیک قهرمانان د خپلو مډالونو د لاسته راوړلو له پاره سټېج ته پورته سي، د دوی د هیواد بیرغ پورته کېږی او د دوی ملي سرود ږغول کېږي. همدارنګه، دولت تر ټولو زورور سیاسي قدرت دئ. د ځینو شرکتونو ثروت د ځینو غریبو هیوادونو تر ثروت زیات وي، مګر هیڅ فرد، شرکت، ګروپ یا بین المللی سازمان د دولت په شان د فشار او تهدید قدرت نه لري. دولتونه که هر څومره یو له بله تفاوت سره ولري، بیا هم د لاندي شپږو مشخصاتو څخه ټول یا زیات مشترک سره لري: حاکمیت sovereignty، قلمرو territory، نفوس population، سیاسي په رسمیت پېژندنه diplomatic recognition، داخلي سازمان internal organization، او کورنی ملاتړ domestic support.

## حاکمیت:

د یوه دولت تر ټولو مهمه سیاسي مشخصه حاکمیت دئ، چي معنی یې د لوړترین قانوني واک درلودل دي. د دولت په برخه کي یې مفهوم دا دئ چي [دولت] د خپل قلمرو او د هغه په دننه سرحداتو کي د اوسېدونکو د اداره کولو انحصاري حق لري او پر خپل ځان باندي د هیڅ خارجي

قدرت مشروعیت په رسمیت نه پېژني. حاکمیت د دولتونو تر مینځ د قانوني مساوات ځرګندوی هم دئ. د دې مهم پرنسیپ د عملې کېدلو نخښه دا ده چې د ملګرو ملتونو په عمومي اسامبله او هم په نورو بین المللی غونډو کي ټول غړي دولتونه یوازي یوه رایه لري. ایا ټول دولتونه په رشتیا سره هم مساوي دي؟ راسئ چې سان مارینو San Marino او چین سره مقایسه کړو. سان مارینو ټوله د ایټالیې په دننه کي پرته ده او د نړۍ ډېر پخواني جمهوریت دئ چې تاریخ یې ځلرمي میلادي پېړۍ ته رسېږي. تر ډېرو کلونو پوري سان مارینو د نړۍ د سیاست څخه ځان ګوښه ساتلی وو، مګر په ۱۹۹۲ کال ع کي یې د ملګروملتونو غړیتوب ومانه او په عمومي اسامبله کي یې د چین او نورو مستقلو هیوادونو سره مساوی نماینده ګي لاسته راوړه. په ملګروملتونو کي د یوه غړي هیواد خارجه وزیر وویل: "دا حقیقت چې د یوه وړوکي هیواد استازی د نړۍ د ډېرو مهمو دولتونو د استازو سره پر یوه مېز کښېني، پخپله د حاکمیت ښکارندوی دئ".

دې مهم ټکي ته باید پام وکړو، چې حاکمیت، چې یوه حقوقي او تیوریکي اصطلاح ده، د استقلال سره، چې یوه سیاسي او عملي اصطلاح ده، توپیر لري. استقلال د بیګانه وو د کنټرول څخه د ازادۍ په معنی دئ. په یوه ایډیال او د قانون پر لار برابره نړۍ کي به د حاکمیت او استقلال معنی یو شی وي، مګر چیري چې قدرت مهم وي، استقلال مطلق نه دئ. ځیني وختونه یو وړوکی هیواد دومره د خپل زورور همسایه هیواد تر نفوذ او کنټرول لاندي وي چې استقلال یې په شک کي وي. په خاصه توګه د خارجي او دفاعي پالیسیو په برخه کي ویلای سو، چې  په حقوقي لحاظ حاکم sovereign دولتونه لکه بوتان Bhutan (چې د هندوستان تر کنټرول لاندي دئ)، د مارشال جزیرې (چې د امریکې د متحده ایالاتو تر کنټرول لاندي دي) او موناکو Monaco (چې د فرانسې تر کنټرول لاندي

ده) یوازي محدود استقلال لري.

## قلمرو:

د دولت بله مشخصه قلمرو دئ. دا ښکاره خبره ښکاري چي یو دولت باید فزیکي سرحدات ولري او ډېر دولتونه رشتیا هم سرحدات لري. مګر، که ښه په غور ورته ګورو د قلمرو مسئله پېچلې او مغلقه ده. د سرحداتو پر سر ډېري بین المللي مناقشې موجودي دي؛ قلمروي سرحدات سره پراخېدلای، کوچنی [منقبض] کېدلای او تغیر موندلای سي؛ حتی دا هم ممکنه ده چي یو دولت قلمرو ونه لري. ډېر هیوادونه فلسطین د مستقل دولت په توګه په رسمیت پېژني، او فلسطینیان هم تر یوه حده پوري پر غزه (چي د اسراییل او مصر تر منځ پرته سیمه ده) او غربي ساحل West Bank (چي د اسراییل او اردن تر مینځ پرته سیمه ده) باندي خودمختاري چلوي [یعنی محدود کنټرول پر لري]. سره له دې هم، دا سیمي په اسانۍ سره د فلسطین قلمرو، چي په هغه کي فلسطینیان خپل مستقل حاکمیت چلوي، نه سي بلل کېدای. پاکستان پر دولتي قلمرو باندي د واک چلولو د محدودیت یو بل مثال دئ. شمال غربي پاکستان د پښتنو، چي په افغانستان کي هم اکثریت قوم دئ، په کنټرول کي دئ. د پاکستان حکومت، چي د پنجابیانو په کنټرول کي دئ، د سرحدي سیمو پر مسلحو پښتنو باندي محدود واک چلولای سي. یو دلیل چي اسامه بن لادن وتوانېدي چي د ۲۰۰۱ کال راهیسی په دې سیمه کي پټ سي پر دې سیمه د پاکستان محدود کنټرول دئ.

## نفوس:

ولس د هر دولت ښکاره لازمي شرط دئ، مګر د نفوس شمېره هم د

هیوادونو تر منځ ډېر زیات  توپیر لري؛ د واتیکان نفوس ۹۳۲ او د چین نفوس بیا تقریباً ۱,۳ بلیونو ته رسېږي. دا هم ښکاره نه ده چې د بین المللي سیستم د تکامل سره د یوه هیواد د خلکو وفاداري څرنګه تغیر مومي. تابعیت هم د پخوا سره په مقایسه په تغیر کې دئ. د مثال په توګه، د اروپایي اتحادیې (EU) د یوه هیواد تبعه چې د اروپایي اتحادیې په کوم بل هیواد کې اوسېږي، اوس کولای سي چې د هغه هیواد په محلي انتخاباتو کې رایه ورکړي او حتی کولای سي یو محلي مقام لاسته راوړي. همدارنګه، زیاتېدونکي شمېر هیوادونه (چې اوس تر۹۰ زیات دي) دوه ګون تابعیت dual citizenship، یعنی د دوو هیوادو تابعیت، په رسمیت پېژني. د مثال په توګه، په دې نژدې وختونو کې مکسیکو پخپلو قوانینو کې داسې اصلاحات راوستل چې د هغو پر اساس اوس هغه مکسیکویان چې د امریکې متحده ایالاتو ته یې مهاجرت کړی دئ کولای سي خپل د مکسیکو تابعیت وساتي. دوی کولای سي د مکسیکو د جمهوري ریاست په انتخاباتو کې رایه ورکړي، حتی د دوی اولادونه چې د امریکې په متحده ایالاتو کې زېږېدلي وي هم کولای سي دوه ګون تابعیت لاسته راوړي.

## په رسمیت پېژندنه:

دولت والی پر دوو شیانو ولاړ دئ؛ یو دا چې یو دولت پخپله د دولت والي ادعا وکړي او بل دا چې موجود دولتونه یې په رسمیت وپېژني. دا چې د دولت والي د لاسته راوړلو له پاره باید څومره دولتونه هغه په رسمیت وپېژني یوه ډېره پرله پېچلې موضوع ده. کله چې اسراییل په ۱۹۴۸ کې خپله آزادي اعلان کړه، د امریکې متحده ایالاتو او شوروي اتحاد ډېر ژر هغه په رسمیت وپېژاند. د هغه عرب ګاوندیانو نه یوازې اسراییل په

رسمیت ونه پېژندی، بلکې حمله یې پر وکړه؛ ځکه چې دوی اسراییلو ته د یو صیهوني یرغلګر په سترګه کتل. ایا اسراییل په دغه مقطع کې یو دولت وو؟ یقیناً داسې ښکاري، ځکه مهمه دا ده چې کوم هیوادونه او څومره هیوادونه یې په رسمیت پېژني. دې ته ورته حالت اوس کوسوو Kosovo لري چې یو آزاد دولت دئ او پخوا د یوګوسلاویې یو ولایت وو. همدا اوس، د دې لیکنې تر لیکلو پوري، ۵۲ هیوادونو د کوسوو دولت والی په رسمیت پېژندلی دئ.

همدارنګه، په رسمیت نه پېژندنه، حتی که د اکثریت هیوادونو له خوا هم وي، د دې معنی نه لري چې یو دولت ګواکې وجود نه لري. کله چې په ۱۹۴۹ کال کې د ماؤتسې تونګ کمونستي حکومت په چین کې قدرت ته ورسېدی، د نورو هیوادونو له خوا یې سیاسی په رسمیت پېژندنه سوکه او سسته وه. د امریکې متحده ایالاتو د چین په رسمیت پېژندنه تر کال ۱۹۷۹ پوري وځنډوله . ایا د دې معنی دا وه چې د چین د خلګو جمهوریت People’s Republic of China په دغه دوران کې وجود نه درلود؟ د دې سوال جواب معلومداره منفي دئ. د ځینو هیوادونو سیاسي موقف، چې د چین مات سوی او تایوان ته تښتېدلی نېشنلیستي حکومت یې مشروع باله، له لومړی سره یوه ښکاره افسانه وه.

د په رسمیت پېژندلو موضوع تر اوسه هم یوه جدي بین المللی اندېښنه پاته سوې ده. تایوان په عمل کې له هره درکه یو آزاد هیواد دئ چې تر دوو درزنو زیاتو هیوادونو په رسمیت هم پېژندلی دئ. سره له دې هم، تایوان پخپله د چین څخه د جلا والي او آزادۍ ادعا نه لري. ځکه نو تایوان په حقیقت کی یو de facto دولت دئ مګر د قانون له مخې یو de jure دولت نه دئ. کله چې د امریکې متحده ایالاتو په کال ۱۹۷۹ د چین سره ډیپلوماټیک روابط قایم کړل، د امریکې متحده ایالاتو هر وخت د

چين او تايوان په هکله يو حساس توازن ساتلی دئ. له يوې خوا له چين څخه د تايوان د بېل هويت ملاتړ کوي او له بلي خوا نه غواړي د چين سره خپل مناسبات (په تېره بيا اقتصادی مناسبات) خراب کړي. د دې فصل په پای کي به ځيني نور تايوان ته ورته حالتونه تشريح سي.

د په رسميت پېژندلو په برخه کي يوه بله ستونزه د فلسطين ده. د چين او هندوستان په شمول تقريباً سلو هيوادو د فلسطين ملي اداره Palestinian National Authority (PNA) د فلسطين د حکومت په توګه په رسميت پېژندلې ده. PNA د ملګرو ملتونو په شمول د يو شمېر بين المللي سازمانونو مکمل يا د مبصر په توګه غړيتوب لري. په کال ۲۰۰۲ کي د ملګروملتونو د امنيت شورا د يو بېل فلسطيني دولت د جوړېدو پرېکړه صادره کړه. د امريکې متحده ايالات او زيات شمېر نور هيوادونه د يوه فلسطيني دولت د جوړېدلو ملاتړ کوي. سربېره پر دې هم، ښکاره خبره ده چي يومستقل فلسطين وجود نه لري.

که څه هم د دولت والي statehood او سياسي په رسميت پېژندني تر منځ رابطه وضاحت نه لري، بيا هم دولت والی ډېر مهم فکتور تشکيلوي. د مثال په توګه، د فلسطين ملي اداره د ملګرو ملتونو په عمومي اسامبله کي چوکۍ لري، مګر رايه نه سي ورکولای. د دولت په رسميت پېژندنه له دې امله هم مهمه ده چي يوازي دولت کولای سي په قانوني توګه دولتي اسهام خرڅ کړي [ځيني وختونه د دولتي بودجې د کسر د رفع کولو له پاره دولت دولتي اسهام bond پر خلکو خرڅوی چي په اصل کي د خلکو څخه پيسې په پور اخلي]. همدارنګه يوازي دولت کولای سي په بين المللي بازار کي درنې وسلې وپلوري. په کال ۱۹۴۸ کی سياسي په رسميت پېژندني د اسراييلو د بقا سره مرسته وکړه؛ ځکه د دو لت په حيث اسراييلو وکولای سوای پيسې راغونډې کړي او په امريکا او

اروپا کې درنې وسلې وپلورې.

## داخلي سازمان او اداره:

دولتونه باید په نورمال حالت کې یو ډول سیاسي او اقتصادي ساختمان structure ولري. دولت والی په ډېر بحراني دوران کې، حتی په انارشي کې، دوام درلودلای سي. د تېري لسیزي په دوران کې افغانستان، لایبیریا، سومالیه، او ځیني نور موجود دولتونه بشپړي بې نظمۍ ته ورښوېدلي دي. مګر بیا هم دا بې نظمه دولتونه په حقوقي او قانوني توګه وجود لري. هر یو له دې دولتونو څخه د ملګرو ملتونو په عمومي اسامبله کې د یو مستقل او مساوي دولت په شان چوکۍ او رایه لري.

د مثال په توګه، سومالیې د ۱۹۹۰ کلونو راهیسي یو کاري حکومت [یعني چې د حکومت په شان وظیفه سر ته رسوي] نه دئ درلودلی. تر ډېره وخته پوري د سومالیا انتقالي فدرال حکومت Transitional Federal Government (TGF) په کینیا کې موقعیت درلود، ځکه دومره زور یې نه درلود چې په موګه دیشو [د سومالیې پایتخت] کې په خوندي او محفوظه توګه غونډې وکړي. په عین حال کې، د سومالیې اصلي کنټرول د بېلابېلو قبیلو د جنګسالارانو تر منځ وېشل سوی وو. دا جنګسالاران په کال ۲۰۰۶ ع کې د افراطي مسلمانانو د یوې ډلي له خوا، چې د اسلامي عدالت Islamic Courts په نامه یادېدل، مات سول. وروسته په کال ۲۰۰۷ ع کې بېوزلي او ناامیده انتقالي فدرال حکومت (TGF ) دوباره هغه وخت سومالیې ته راستون سو، چې یوتوپیا یې قواوو، د امریکې د هوایي حملو په ملاتړ، افراطیون [د اسلامي عدالت ډله] له قدرته لیري کړل. سره له دې هم، د افراطیونو ماتې دا معنی نه درلوده چې انتقالي فدرالي حکومت ګوا کې قدرت ته ورسېدی.

## داخلي ملاتړ:

د دولت یوه بله لازمي مشخصه داخلي ملاتړ دئ. ډېر مثبت شکل یې هغه دئ چي خلګ پخپله خوښه د دولت واک ته غاړه ایږدي، دولت ته وفاداره وي او هغه ته مشروعیت وربخښي. منفي او غیرفعال شکل یې هغه دئ چي ولس په ناخوښۍ سره د حکومت واقعیت مني او د هغه و قدرت ته غاړه ایږدي. د زور او قدرت د ټولو هغو وسایلو سره چي دولتونه یې په اختیار کي لري، بیا هم که د ولس لږ تر لږه غیرفعال رضائیت موجود نه وي، د دولت پایښت ډېر مشکل دئ. د چکوسلواکیې، شوروي اتحاد او یوګوسلاویې انحلال د څو ملتي دولتونو د ړنګېدلو مثالونه دي. د تر جنګ وروسته عراق یوه لویه ستونزه دا ده چي ایا پر شیعه، سني او کرد باندي سره وېشل سوی ولس به د حکومت ملاتړ وکړي او کنه.

## د دولت هدف:

ایا تاسی یو وخت په دې کي فکر کړی دئ چي دا موږ انسانان ولي ځانونه په سیاسي واحدونو کي د حکومت سره په تنظیم کښېباسو؟ ځکه په حکومت باندي ډېري پیسې لګېږي، او له بلي خوا حکومت موږ ته وایي چي دا کار وکړئ او ها کار مه کوئ. سره له دې هم، انسانانو د تاریخ په اوږدو کي خپل ځانونه د حکومت تابع ګرځولي دي.

که څه هم د سیاست فلاسفه پر دې موضوع باندي موافقې ته نه دي رسېدلي چي ولي انسانانو ټولني جوړي کړي او حکومتونه یې منځته راوړي دي، مګر په دې هکله د انفرادي [شخصي] بهبود او ترقۍ پر موضوع سره جوړ دي. [یعنی د سیاست فلاسفه پر دې موضوع سره جوړ دي چي انسانانو د خپل ځان د بهبود او پرمختګ له پاره ټولني جوړي کړي او حکومتونه یې منځته راوړي دي]. دا موضوع د توماس هابس Thomas

Hobbs (۱۵۸۸-۱۶۷۹) او جان لاک John Locke (۱۶۳۲-۱۷۰۴) غوندي کلاسیک تیوریسنانو په لیکنو کي ښکاره ده. دوی دواړه په دې عقیده دي چي انسانانو یو وخت د افرادو په شکل او یا هم د فامیلي ګروپونو په شکل په طبیعي حالت state of nature کي ژوند کاوه. د بې اړیکو افرادو ټولني موجودي نه وې او خلګ د انفرادي حاکمیت sovereignty خاوندان وه. د دې معنی دا ده چي دوی تر خپلي کورنۍ دباندي هیڅ چا او هیڅ شي ته د دوی او د دوی د چارو د اداره کولو واک نه وو سپارلی. هابس او لاک همدارنګه په دې عقیده دي چي خلګو ته بالاخره دا ډول غیر متمرکز ژوند د قناعت وړ نه وو. ځکه نو، د خپل د ژوند د سمون غوښتني افراد او کورنۍ دې ته اړایستلې چي ټولني جوړي کړي، د خپل حاکمیت تر زیاتي برخي تېر سي، او د ټولني د چارو د اداره کولو له پاره حکومتونه تشکیل کړي. دا ټول شیان پر یوه ضمني تفاهم چي اجتماعي قرارداد social contract نومېږي ولاړ دي چي [دا اجتماعی قرارداد] د حکومتونو اهداف او محدودیتونه ټاکي.

هابس او لاک بیا پر دې سره موافق نه وه چي کوم شي خلګ دې ته اړ ایستل چي طبیعي حالت پرېږدي او ټولني جوړي کړي. هابس ادعا درلوده چي بېري [وېره fear] خلګ دې کار ته اړ ایستل. بې له حکومته ژوند ډېر بېروونکي او خطرناکه وو، ځکه نو خلګو د خپل ځان د ساتني له پاره قوي حکومتونه منځته راوړل. لاک بیا یو مثبت نظر درلود او ادعا یې درلوده چي خلګ یو له بله ځکه سره یو ځای او ټولني یې جوړي کړې چي دا ورته څرګنده سوه چي دوی خپل ژوند یو له بل سره د همکارۍ له لاري، نه د انفرادي هڅو له لاري، ښه کولای سي.

د هابس او لاک په هکله مهم ټکی دا دئ چي دوی دواړه پر دې سره موافق وه چي حکومتونه د عملي او مفیدو اهدافو له پاره منځته راوړل سوي

دي او تر هغه وخته مشروعيت لري چي خپل عملي رسالت سر ته رسوي او د اجتماعي قراداد له مخي له خپل واک څخه ناوړه استفاده و نه کړي. دې ته د حکومت د مفيديت تيوري instrumental theory of government وايي. د امريکې د پخواني جمهور رئيس په قول، «حکومت پخپله بايد نهايي هدف ونه ګرځول سي؛ حکومت يوه وسيله ده ... دولت د ټولني له پاره وجود لري، نه ټولنه د دولت له پاره».

## دولتونه څرنګه اداره کېږي؟

دا چي دولتونه څرنګه اداره کېږي، په نړيوال سياست کي يو لړ نتايج پر بنا دي. دا نتايج له دې پوښتنو سره اړه لري چي ولي ځيني حکومتونه د نورو په تناسب جګړه مار دي، ايا ځيني حکومتونه پخپلو خارجي پاليسيو کي تر نورو موفق دي، او ايا دا معقوله ده چي د حکومت کولو يو مشخص ډول [شکل] د پر مخ بېولو له پاره کار وسي. د مثال په توګه لکه د امريکې متحده ايالات چي په نړۍ کي د ډيموکراسۍ د ودي او ملاتړ لوز کړی دئ.

د دې پوښتنو په ارتباط موږ کولای سو، چي د حکومت کولو governance تيوري ګاني پر دوو پراخو کټه ګوريو وويشو. يو استبدادي حکومتونه authoritarian دي چي د حکومت د لوړپوړو مقاماتو ماسوا نورو افرادو او ګروپونو ته په تصميم نيولو کي هيڅ يا ډېره لږ برخه ورکوي. بل بيا ډيموکراټيک حکومتونه دي چي خلګو ته اجازه ورکوي چي په سياسي پروسه کي پراخ او له معنی ډک ګډون وکړي.

## استبدادي حکومت:

د تاريخ په اوږدو کي، د حکومت دارۍ ډېر عام شکل دا وو، چي يوه

فرد یا یوه ګروپ پر خلکو کنټرول چلاوه. له دوی سره دا اندېښنه ډېره لږ او یا هیڅ موجوده نه وه چې خلکو د دوی او یا د دوی له پالیسیو سره موافقه درلوده او کنه. د دیکتاتورۍ بېلابېل اشکال د یوه فرد یا یوه ګروپ له خوا د قدرت د لاسته راوړلو له لاري رامنځته سوي دي. سره له دې بیا هم، د استبدادي رژیم د ملاتړ له پاره یو شمېر منطقي دلایل وجود لري.

د اداري یو له ډېرو پخوانیو اشکالو څخه تیوکراسي theocracy، یعني د روحاني لیډرانو حکومت دئ. نن ورځ، د حکومت دارۍ دا شکل تقریباً له منځه تللی دئ، او واتیکان په اوسنۍ نړۍ کي یوازنی خالص روحاني حکومت دئ. ځیني روحاني عناصر، که څه هم چي قانوني شکل نه لري، بیا هم په ځینو ځایونو کي پاته دي؛ د جاپان د امپراطور موقف، د تایلینډ پاچا او (تر ټولو قوي) د تبت د لای لاما یې مثالونه دي. دایران حکومت هم تر یوه حده روحاني دئ. سربېره پر دې، اسلامي مذهبي قانون (شریعت) په ډېرو اسلامي هیوادونو کي ډېر قوي رول لوبوي. همدارنګه، په ډېرو ځایو کي د مذهبي بنسټ پالني د زیاتېدونکی قوت سره د تیوکراسۍ بیا راژوندي کېدل د امکان څخه لیري خبره نه ده.

غیرمذهبي secular استبداد هم لرغوني ریښې لري. د مثال په توګه، یوناني فیلسوف افلاطون پخپل مشهور اثر، جمهوریت، کي ډیموکراسي رد کړه. د ده په عقیده ډیموکراسي «د ګډوډۍ... ډکه ده چي په هغه کي ګویا مساوي او غیرمساوي ته په یوه سترګه کتل کېږي. [دلته اشاره د هغه وخت طبقاتي سیسټم ته ده]» د ده په عقیده، د عامو خلکو له خوا د دولت اداره به داسي معنی ولری لکه د یوې بېړۍ ماڼوګان چي «د بېړۍ پر چلولو جګړه سره کوي؛ هر یو فکر کوي چي باید د بېړۍ کنټرول په لاس کي واخلي، که څه هم چي د ده به د بېړۍ چلول navigation هیڅ زده هم نه وي...» د افلاطون نتیجه ګیري دا وه

چي«هغه کسان چي غواړي اداره سي باید په هغه سړي پسې چي دوی اداره کړای سي وګرځي او پیدا یې کړي».

سلطنت Monarchism د سکیولر استبداد یو بل شکل دئ. که څه هم، دا تیوري چي خدای تعالی پاچهانو ته د فرمانروایي مقدس حق وربخښلی دئ، یو مذهبي اړخ لري. د حکومت دارۍ دا ډول میراثي سیستم اوس چندان پاته نه دئ. یوازي یو څو زورور پاچهان (لکه د سعودي عربستان پاچا) پر ځای پاته دي، مګر نور یې مشروطه شاهي constitutional monarchy رژیمونه دي چي قدرت یې ډېر محدود دئ.

کمونیزم چي ولادیمیر لنین په شوروي اتحاد، ماؤتسه تونګ په چین او نورو کمونستي لیډرانو په نورو ځایونو کي پیاده کړ، د استبدادي رژیمونو په ډله کي راځي. کارل مارکس توقع درلوده چي د سرمایه دارۍ او کمونیزم تر منځ سوسیالیستي انتقالي دوره کي به پر بورژوازي باندی د «پرولتاریا دیکتاتوري» چلېږي. لنین دې نظریې ته رسمیت ورکړ او قدرت یې د کمونیست ګوند په لاس کی متمرکز کړ، چي ګوند بیا پخپل وار سره د پولیټ بورو Politburo او د هغه د مشر په تسلط کي وو. کمونیزم د شلمي پېړۍ په وروستۍ برخه خپل عظمت ته هغه وخت ورسېدئ چي کمونیستي حکومتونه په شوروي اتحاد، چین، شرقی اروپا او ځیني نورو هیوادونو کي، چي د نړۍ د نفوسو په سلو کي ۳۰ یې تشکیلول، مسلط وه. تر هغه راوروسته کمونیزم ډېر بد سره ولړزېدی، او د حکومت د سیستم په توګه یوازی په چین، کیوبا، شمالي کوریا او ویتنام کي لا تر اوسه پاته دئ. سره له دې هم، کمونیست ګوندونه په ډېرو هیوادو کي فعال دي. د مثال په توګه، کمونیستانو د نیپال د ۲۰۰۸ کال په انتخاباتو کي اکثریت وګاټه او اوس د یوه ایتلافی حکومت رهبری په لاس کي لری.

یوه بله استبدادي سیاسی فلسفه فاشیزم fascism دئ. دا اصطلاح زیاتره وخت په غلط شکل د هغو کسانو له پاره کارول کېږي چې په سیاسي لحاظ ډېر راست [محافظه کار] وي. د فاشیزم هغه اصول چې د ایټالیې بینیتو موسیولیني او د جرمني آدولف هیټلر یې ملاتړ کاوه په لاندي ډول بیانېدلای سي:

١. د معقولیت ردول او د حکومت کولو له پاره د خلګو پر احساساتو تکیه کول.
٢. د ځینو ګروپونو پر تفوق [ښه والي] او د ځینو پر حقیروالي [کښته والي] عقیده درلود.
٣. د «حقیرو» هیوادو د خلګو تر لاس لاندي کول.
۴. د انفرادي حقوقو ردول (د جمعي حقوقو له پاره).
۵. اقتصادي فعالیتونه باید د دولت د ملاتړ له پاره وي.
٦. عقیده درلودل چې د فرد عالیترینه څرګندونه په خلګو کی ده. [یعني ټولنه تر فرد مهمه ده].
٧. عقیده درلودل چی د خلګو عالیترینه څرګندونه د هغوی په لیډر کي ده.

## ډیموکراټیک حکومت :

ډیموکراسي تر میلاد ۵۰۰ کاله مخکي د لرغوني یونان په ښار – دولتونو city-states کي منځته راغله او د ۲۰۰۰ کالو راهیسي، وخت ناوخته دلته هلته وجود لري. په انګلیستان کی د ډیموکراسۍ تدریجي پاڅون او د اتلسمي پېړۍ په پای کي د امریکې او فرانسې انقلابونو ډیموکراسي په یوې مهمي سیاسی نظریې تبدیله کړه. سربېره پر دې هم، د ډیموکراسۍ خپرېدل په کرار او بطي شکل جریان درلود. وروسته، په تېرو څو لسیزو کي د ډیموکراسۍ د پراختیا جریان ډېر زیات چټک سو.

ډیموکراسي، لږ تر لږه، د حکومت یو داسي سیستم دئ چي دوه ډوله حقوق خلګو ته وړاندي کوي. لومړی ډول یې یو لړ سیاسي حقوق دي چي خلګ په آزاده توګه و خپلو کاندیدانو ته د رایی ورکولو حق ولري. کاندیدان چي د مختلفو نظریاتو لرونکي وي، د انتخاب په صورت کی به د حکومت د پالیسۍ په جوړولو کی مهم اثر ولري. دوهم ډول یې بیا یو لړ مدني ازادي ګاني دي؛ لکه د بیان آزادي، د اجتماعاتو آزادي،او د قانون په وړاندي مساوات چي د یو آزاد حکومت له پاره مهم دي. دې خبري ته پام وکړئ چي زموږ د ډیموکراسۍ په تعریف کي د «لږ تر لږه» کلمه موجوده وه. دا ټکی د دې حقیقت څرګندوی دئ چي ډیموکراسۍ ته منسوب خصوصیاتو په هکله، او هم دا چي کوم هیوادونه ډیموکراټیک او کوم ډیموکراټیک نه دي، بحثونه او مناقشې رواني دي. دا خبره په خاصه توګه مهمه ده چي ٪۱۰۰ آیډیال ډیموکراسي وجود نه لري.

## ډیموکراسي او امنیت:

د ډیموکراټیکي سولي تیوري د ډیموکراسۍ او نړیوال سیاست تر منځ یو په زړه پوري تړاو تشکیلوي. دا تیوري جرمني فیلسوف ایمانویل کانټ Immanuel Kant په خپل یو اثر کي چي ابدی سوله Perpetual Peace (۱۷۹۵) نومېږي رامینځته کړې ده. ده عقیده درلوده چي د نړۍ ټولو هیوادو ته د ډیموکراسي پراخېدل به جنګ له منځه یوسي. کانټ استدلال کاوه چي ډیموکراټیکه سوله به ځکه رامنځته سي چي «که د جنګ د اعلانولو په تصمیم کي د خلګو رضائیت لازم سي...، نو دا ډېره طبیعي خبره ده چي دوی به د جنګ د اعلان په برخه کي محتاط واوسي». اوسنۍ څېړني هم د دې نظریې د تایید پر خوا تمایل لري چي ډیموکراټیک هیوادونه ډېر لږ یو د بل په مقابل کي وسلې ته لاس اچوي.

د ډیموکراټیکي سولي د تیورۍ په هکله باید څو ټکو ته پام وسي. لومړی دا چي ډیموکراسي هم جنګ کوي. ښکاره مثال یې د امریکې متحده ایالات دي چي یوه مخکښه ډیموکراسي ده او هم د ۱۹۴۵ راهیسي زیات وخت په جنګ کي اخته ده. دوهم دا چي، ټول څېړونکي د ډموکراټیکي سولي د تیورۍ سره موافق نه دي. د مثال په توګه، ځیني تحلیلګران په دې باور دي چي د ډیموکراسیو تر منځ د جنګ نستوالی یو تاریخي بې قاعده توب دئ چي ښایي په آینده کي دوام ونه کړي. راتلونکی تاریخ ښایي د ډیموکراټیکي سولي تیوري غلطه ثابته کړي. مګر همدا اوس د سکالرانو تر منځ پر دې خبره یو ډول توافق سته چي ډیموکراسۍ [ډیموکراټیک دولتونه] خپل تر منځ، د استبدادي دولتو په تناسب، ښه روابط سره لري.

## د قدرت پرله پېچلی ماهیت

د یوه لوړ رتبه امریکایي مامور په قول، «تر څو چي د انسانانو طبیعت تغیر نه وي موندلی، قدرت او زور به د بین المللي اړیکو زړه تشکیلوي». هر څوک به ښایي د دې ډول تاریک عملي سیاست realpolitik سره موافق نه وي، مګر د ډیپلوماسۍ په ساحه کي د قدرت رول او اهمیت په ښه توګه بیانوي. کله چي د دولتونو اهداف او منافع سره په ټکر کي سي، عموماً د هغه اړخ په ګټه تصمیم نیول کېږي چي زیات قدرت ولري.

د قدرت power اصطلاح به موږ دلته د یوه هیواد د مجموعي توانایي [یعني هغه څه چي یو هیواد یې د کولو قدرت ولري] په توګه استعمالوو. په عادي محاوره کي قدرت د «پر سر ټکولو» او یا په چا باندي په زوره د یو کار د کولو په معنی کارول کېږي. دا خبره ډېره مهمه ده چي موږ دلته

قدرت په بله معنی استعمالوو. لکه چي وروسته به وڅېړل سي، قدرت کېدای سي پر مثبت قناعت ورکولو او یا هم پر منفي تهدید تکیه ولري. په رشتیا سره هم، قدرت ډېر اشکال لري. نظامی زور، ثروت او ځیني نور اشکال یې ډېر ښکاره او محسوس دي. نور بیا لکه ټینګه ملي اراده او ډیپلوماټیک مهارت دومره ښکاره او محسوس نه دي.

## مطلق او نسبي قدرت:

هغه قدرت چي بې له شکه وجود لري او د استعمال امکان یې موجود وي مطلقه قدرت بلل کېږي. یو مثال یې هغه تقریباً ۵۰۰۰ ذروي ګولۍ دي چي د امریکې متحده ایالاتو په تقریباً ۱۰۰۰ میزایلونو او جنګي الوتکو کي ځای پر ځای کړي دي. دا ګولۍ بې له کوم شک او شبهې وجود لري او که کار ځني واخیستل سي ډېر تاثیر به وښندي. په تیوریکي لحاظ یې د کارولو اختیار د جمهور رئیس په لاس کي دئ.

په تیوري کي چي هر څه وي، قدرت په خلا کي وجود نه سي لرلای. څرنګه چي قدرت په یو چا باندي په زور د یوه کار د کولو او یا نه کولو توان درلودل دي، نو یوازي د مقابل طرف سره په مقایسه کي اندازه کېدای سي. له دې امله نو نسبي یا مقایسوي قدرت هم باید په نظر کی ونیول سي. د مثال په توګه، موږ بې له دې چي د کوم هیواد سره یې مقایسه کړو نه سو ویلای چي چین یو پیاوړی هیواد دئ. د چین د قدرت منابع چي هر څه وي، د جاپان سره په مقایسه یې قدرت لږ او د ویتنام سره په مقایسه یې قدرت ډېر دئ. کله چي د چین اسیایي رقیب هندوستان په کال ۱۹۹۸ کي د هستوي وسلو ازموینه سر ته ورسوله، د چین قدرت د هندوستان په تناسب رالږ سو.

## د قدرت توان او د قدرت اراده:

د هر هیواد قدرت په عمده توګه د هغه د قدرت په شتمنی سره څرګندېږي. نظامي او اقتصادي قوت، لیډرشپ، نفوس، د خلګو استعدادونه او ځیني نور داسی فکتورونه د یوه هیواد د قدرت ظرفیت [یعنی په بین المللی ساحه کي قدرت د استعمال توانمندي] تشکیلوي. مګر یوازي د دې عمده قدرتونو په درلودلو سره د یو هیواد څخه نړۍ وال قدرت نه جوړېږي. دا شیان و یوه هیواد ته د قدرت څخه د کار اخیستلو توان او ظرفیت ور په برخه کوي. مګر د دې له پاره چي یو هیواد په نړۍ وال ډګر کي مؤثر وګرځي، د قدرت اراده will to power هم ورته په کار ده. یعني دا چي یو هیواد باید د قدرت د استعمال اراده هم ولري.

جاپان په دې برخه کی یو ډېر ښه مثال وړاندي کوي. له اقتصادي پلوه جاپان د نړۍ دوهم قوي هیواد دئ. د جاپان ناخالص ملي تولید GNP یوازي د امریکې د متحده ایالاتو په وړاندي دوهم مقام لري، مګر بیا هم د چین، فرانسې او برتانیې تر مجموعي ناخالص ملی تولید زیات دئ. د جاپان ۱۲۷ ملیونه په لوړه سویه تربیه سوی نفوس هم د دې هیواد یو بله عمده شتمني ده. همدا رنګه، بې له دې چي د چا توجه دي جلب کړي، جاپان یوه ډېره مجهزه نظامی قوه جوړه کړې ده چي کالنۍ بودجه یې تر ۴۱ بلیونو ډالرو زیاته ده. پر دې ټولو سربېره، د جاپان جهاني نفوذ تر دوهمي عمومي جګړې وروسته ځکه محدود پاته سوی دئ چي پخپله نه غواړي میدان ته راووزي. په سیمبولیک شکل، د جاپان اساسي قانون «د زور له لاري د بین المللي شخړو حل کول منع کړي دي». بله مهمه خبره دا ده چي جاپان نه یوازي د قوې د استعمال مخالف دئ، دوی د خپلو نظریاتو د ترویج په برخه کي هم د جدي موقف نیولو څخه ډډه کړې ده.

دې طرز تفکر اوس تغیر موندلی دئ. احصائیې ښیي چي د جاپان په خلکو کي د ملي غرور احساس ورځ تر بلي زیاتیږي. جاپان په ډېره تدریجي توګه خارجی هیوادو ته د نظامي واحدونو په لېږلو پیل کړی دئ. جاپان همدارنګه د ملګروملتو د سولي ساتني په ماموریت کي برخه اخلي او په کال ۲۰۰۳ کي یې ۶۰۰ غیر محاربوي عسکر (انجینري اوطبي واحدونه) په عراق کي ځای پر ځای کړي دي. پر دې سربېره، د جاپان بحري قوه د خپلي لومړنۍ هلیکوپتر وړونکي بېړۍ له پاره تیاری نیسي او د کوماندو واحدونو ټرېنینګ یې چټک کړی دئ. دې کار د جاپان ګاونډي هیوادونه په تشویش کي اچولي دي. همدارنګه، جاپان د ملګروملتو د امنیت په شورا کي د دایمي چوکۍ د په لاس راوړلو له پاره هلي ځلي پیل کړي دي. د امنیت په شورا کي د امریکې د متحده ایالاتو سفیر په دې وروستیو کي داسي تبصره کوي چي «جاپان په تغیر کي دئ او وایي چي موږ یو ستر هیواد یو، د نړۍ دوهم اقتصاد لرو او د الکاهل په بحر کي دوهمه بحریه لرو. موږ د امنیت په شورا کي دایمی چوکۍ غواړو. موږ غواړو په بین المللي ډګر کي رول ولوبوو». له دې امله د دې اټکل کېدای سي چي جاپان به خپل د قدرت ظرفیت په عملی قدرت واړوي او په بین المللی ډګر کي به په قوي رول ولوبوي.

## د قدرت ډاینامک [محرکه قوه]:

د قدرت اندازه کول هم ځکه مشکل دئ چي هر وخت په تغیر کي وي. د هیوادو اقتصاد مخته یا شا ته ځي، نظامي قواوي موډرني کېږي یا له موډه لوېږي، نوي طبیعي منابع کشفېږی یا لږېږي، خلک د حکومتو ملاتړ کوي یا پر بې اعتماده کېږي. د روم څخه رانیولې بیا د برتانیې تر امپراطورۍ او شوروي اتحاد پوري، هیڅ سوپر پاور تر پایه دوام نه دئ

مونډلی. هر یو له دغو څخه له زوال سره مخامخ سو او شوروي اتحاد خو بالکل له منځه ولاړ. د دوی پر ځای نوي هیوادونه، لکه د امریکې متحده ایالات، د لویو قدرتو په قطار کی ودرېدل. چین هم هڅه کوي چي خپل پخوانی برم بیرته لاس ته راوړي.

د یوه هیواد قدرت ته رسېدل یا له قدرته رالوېدل په یو شمېر فکتورونو پوري اړه لري چي د قدرت منابع په هغو کي مهم رول لوبوي. تقریباً ۶۰ کاله مخکي د هستوي وسلې منځته راتلو د هغو هیوادو د مقام په لوړېدلو کي چي هستوي وسلې یې لرلې ډېر رول ولوباوه. داخلي شرایط هم د هیوادونو پر قدرت اغېزه ښندي. شوروي اتحاد ځکه راچپه سو، چي نور یې د اکثریت خلکو وفاداري له ځانه سره نه درلوده. اکثریت امریکایان وطن پرسته دي، مګر که د امریکې خلک ونه غواړي په بین المللي سیستم کي د لیډر پاته کېدلو مصارف پر ځان ومني، نو دوی هم د سوپرپاور په توکه دوام نه سي مونډلای. د دې معنی دا نه ده چي د امریکې متحده ایالات دي باید د نړۍ رهبري پر غاړه واخلي، بلکي خبره دا ده چي که امریکا غواړي سوپرپاور پاته سي باید د رهبرۍ درونډ بار پر اوږو واخلي.

## ډیپلوماټیک وسایل

### The Diplomatic Instrument

ډیپلوماسي په عمل کي د قدرت کارول دي، چي موږ به وروسته پر وږغېږو. ځکه نو، ملي ډیپلوماسي یوه پرله پسې چلې لوبه ده چي په هغه کي یو هیواد هڅه کوي چي نور هیوادونه یا بین المللی سازمانونه په خپله خوښه وڅرخوي. که څه هم موږ ته زیات وخت داسي تصویر وړاندي کېږي چي ډیپلوماسي ګواکي په ډېره سړه سینه په ښایسته دفترونو کي

سر ته رسېږي، مګر په واقعيت کی خبره هر وخت داسي نه ده. د اوسني عصر ډيپلوماسي پر سفيرانو او نورو ډيپلوماټانو سربېره د کميونيکېشن ډېري نوري پروسې په بر کي نيسي. که څه هم چي، ډيپلوماسي د خارجي پاليسی د يوازنۍ وسېلې په توګه وړاندي کېږي، مګر واقعيت دا دئ چي د ډيپلوماټانو د ماهرانه مذاکراتو پر وخت د اقتصادي او نظامي قوت څخه هم په غير مستقيمه توګه کار اخيستل کېږي.

## ډيپلوماسی د قدرت د اعمال په توګه:

د ملي ګټو د پر مخ بېولو له پاره د يوه هيواد د قدرت په کار اچول ملي ډيپلوماسي تشکيلوي. که څه هم چي د قدرت په کار اچول موږ ته د نظامي قوې يا د اقتصادي بنديزونو فکر راپيدا کوي، مګر د قدرت په کار اچول ډېره پرله پېچلې موضوع ده. د يوه هيواد اقتصادي او نظامي زور د هغه هيواد په زېربنا کي پروت دئ او قوي زېربنا د يو هيواد په ډيپلوماټيک قوت کي زياتوب راولي.

تر ۱۹۰۰ مخکي، د ډيپلوماټيکو مذاکراتو نورمال شکل د دوو هيوادو تر منځ مستقيم مذاکرات وه چي دوه اړخيزه ډيپلوماسی bilateral diplomacy بلل کېږي. په راوروسته کي څو اړخيزي ډيپلوماسۍ، چي يو شمېر هيوادونه برخه پکښې اخلي، انکشاف وموند. په کال ۱۹۲۰ کي د ملتونو د اتحاديې League of Nations منځته راتلل د څو اړخيزي ډيپلوماسۍ د انکشاف مثال دئ. اوس ۲۵۰ نږۍ وال او سيمه ييز دايمي بين الدولتي سازمانونه (IGO) وجود لري. د امريکې متحده ايالات د ډېرو بين المللي سازمانو غړيتوب لري، او امريکايي ډيپلوماټان هره ورځ په څو اړخيزو مذاکراتو کي برخه اخلي. د مثال په توګه، د امريکې متحده ايالات د دې له پاره چي شمالي کوريا دې ته وهڅوي چي د اټومي وسلو تر

**پروګرام تېره سي، په شپږ اړخيزو مذاکراتو کي، چي مشرتوب يې د چين پر غاړه دئ، برخه اخلي. د دې مذاکراتو نور غړي شمالي کوريا، روسيه، جنوبي کوريا او د امريکې متحده ايالات تشکيلوي.**

## څو اړخيزه ډيپلوماسي:

**که څه هم ځيني استثناآت وجود لري، تر ۱۹۰۰ مخکي د مذاکراتو نورمال شکل دوه اړخيزه ډيپلوماسي** bilateral diplomacy**، يعنی د دوو هيوادو تر منځ مستقيم مذاکرات وه. په راوروسته کي، څو اړخيزه ډيپلوماسي** multilateral diplomacy**، يعني د څو هيوادو ګډو کنفرانسونو، زيات پرمختګ کړی دئ. په کال ۱۹۲۰ کي د ملتونو اتحاديې** the League of Nations **منځته راتلل په دې لار کي يو مهم ګام وو. اوس تقريباً ۲۵۰ دايمی نړيوال او سيمه ايز بين الدولتي سازمانونه وجود لري. تر کال ۱۹۰۰ مخکي، د امريکې متحده ايالاتو په اوسط ډول په کال کي يو ځل په څو اړخيزو کنفرانسونو کي برخه اخيستله. اوس د امريکې متحده ايالات د ډېر شمېر بين المللي سازمانو غړيتوب لري، او امريکايي ډيپلوماټان هره ورځ په څو اړخيزو مذاکراتو کي برخه اخلي.**

**د اوسنۍ موډرني تکنالوجۍ له برکته، چي د هيوادونو تر منځ يې تماس اسانه کړی دئ، د څو اړخيزي ډيپلوماسۍ له پاره زياته زمينه برابره سوې ده. بل دا چي، ډېر نړيوال موضوعات، لکه د محيط [چاپيريال] پرابلمونه، د يوه هيواد يا دوه اړخيزي ډيپلوماسۍ له لاري نه سي حل کيدای. د دې ډول پرابلمونو حل نړيوالي همکارۍ ته اړتيا لري. او همدارنګه، په اوسنۍ نړۍ کي د مهمو بين المللي اعمالو له پاره، په تېره بيا هغه چي د نظامي قوې کارول غواړي، د ملګرو ملتونو په چوکاټ کي د څو اړخيزي ډيپلوماسۍ زياته توقع کېږي.**

په مقابل کې بیا یو اړخیزه ډیپلوماسي unilateralism قرار لري. دا هغه وخت پېښېږي چې یو ځانګړی هیواد، بې له دې چې د کم بین الدولتي سازمان موافقه له ځانه سره ولري، په ځانګړې توګه عمل کوي. د عراق معاصره جګړه دا موضوع ښه تشریح کولای سي. د فارس د خلیج تر جګړې مخکې (۱۹۹۱)، د امریکې د هغه وخت جمهور رئیس جورج ایچ بوش له کویټ څخه د عراق د ایستلو له پاره د ملګرو ملتو اجازه تر لاسه کړه، او د امریکې په مشري یرغل د ۳۳ هیوادو ملاتړ درلود. په کال ۲۰۰۳ کې، د امریکې جمهور رئیس جورج ډبلیو بوش د ملګرو ملتو د تصویب او اجازې پرته پر عراق حمله وکړه، چې یوازې د برتانیې عمده او د درو نورو هیوادو تش په نامه ملاتړ ورسره وو.

## دلیډر اولیډر ترمینځ ډیپلوماسي:

په پخوا وختونو کې ډېر لږ پېښېدل چې پاچهان او یا نور لیډران دي یو له بله سره ووینې او یا مخامخ مذاکرات سره وکړي. اوس موډرن ټرانسپورټېشن او کمیونیکېشن مخامخ لیدني کتنې یو عادي کار ګرځولی دئ. د امریکې جمهور رئیس بوش پخپل لومړیو شپږو کلونو کې ۳۶ سفرونه وکړل او په همدې وخت کې یې د خارجي هیوادونو له۲۱۹۰ لیډرانو او خارجه وزیرانو سره وکتل. همدارنګه، د جمهور رئیس او خارجي لیډرانو تر منځ ټیلفوني خبري یوه عادي پېښه ده.

د لیډرانو تر منځ مخامخ لیدني کتنې ځیني ګټې لري. ځیني وخت دا ډول لیدني کتنی زیات سیمبولیک ارزښت لري. په کال ۱۹۷۲ کې د چین د مشر ماؤتسه تونک سره د امریکې د پخواني جمهور رئیس ریچارد نکسن ملاقات د امریکې د متحده ایالاتو په پالیسۍ کې د یو عمده تغیر څرګندوی وو. ځیني وخت لیډران په دې توانېږي چې د مخامخ لیدنو

کتتنو له لاري د څرګندو تغیراتو له پاره لاره هواره کړي. د ۱۹۷۸ کال د کیمپ ډېویډ معاهدات Camp David Accords، چې د مصر او اسراییلو تر مینځ یې تر ډېرو کلونو خصومت او درې واره جنګ وروسته د روابطو د نورمال کېدلو پروسه راپیل کړه، هغه وخت منځته راغلل چې د امریکې جمهور رئیس جیمي کارټر، د مصر جمهور رئیس انورسادات او د اسراییلو صدراعظم میناخیم بیګین د امریکې د میریلنډ ایالت په کیمپ ډېویډ کې سره وکتل.

د لیډر او لیډر تر منځ ډیپلوماسي ځیني وخت ځینی مشکلات هم لري. ډېر داسي وختونه راغلي دي چې دوه لیډران په مخامخ خبرو کي یوې موافقې ته سره رسېدلي وي، مګر وروسته ښکاره سي چې دوی یو له بله سم نه وي سره پوهېدلي. بل مشکل دا دئ چې لیډران کولای سي د کښته رتبه مقاماتو غلطۍ رد کړي، مګر د یوه لیډر تعهد، که معقول هم نه وي، په اساني سره بیرته نه سي اخیستل کېدای. د امریکې پخواني خارجه وزیر، هینري کیسنجر وایی: "کله چې جمهور رئیسان مذاکرات کوي، نو د تېښتي لاره پر ځان تړي".

## ډیموکراټیکه ډیپلوماسي:

تر شلمي پېړۍ مخکي په لږو هیوادو کي ډیموکراسي موجوده وه. له دې امله نو د ډیپلوماسۍ کارول او د نورو هیوادو سره د معاهدو امضا کول د پاچا په واک کي وه. ځکه نو شپاړسم لویي ویل چې «زه دولت یم». د اجرائیه قوې مشران اوس هم د خارجي پالیسیو په هکله د تصمیم نیولو په پروسه کي ډېر کنټرول لري، مګر نن ورځ دا کار د دوی په انحصار کي نه دئ. اوس ډیموکراټیکه ډیپلوماسي معیار ده چې په هغه کي مقننه قوه، ذینفع ګروپونه interest groups او عامه افکار هم عمده رول لوبوي.

په رشتیا سره هم، د خارجي پالیسۍ په جوړولو کي د داخلي سیاست اهمیت زیات دئ. د یوې پالیسۍ د بریالیتوب له پاره باید ډیپلوماټان هڅه وکړي د حل داسي لار غوره کړي چي هم په بین المللي او هم په داخلي سطحه کي د منلو وړ وي. د تایوان د راتلونکي په باب څو ځله د چین او د امریکې متحده ایالاتو لیډرانو هڅه کړې ده چي نه یوازي خپل تر منځ د توافق ټکي پیاده کړي، بلکي دواړو خواوو ډېره هڅه کړې ده چي د خپلو هیوادو په دننه کي هم هغه داخلي قواوي دفع کړي چي د بحران و عمیق کېدلو ته یې لمن وهله. د چین جمهور رئیس دا خبره وکړه چي «هر لیډر که د تایوان آزادي ومني له قدرته به ایسته کړه سي».

## خلاصه [پرانستې] ډیپلوماسي:

پخوالی یو وخت دډیپلوماسۍ معیاري شکل وو، چي مذاکرات او ځیني وخت حتی معاهدې او قراردادونه په پټه سر ته رسېدل. د امریکې پخواني جمهور رئیس وډرووېلسن د خلاصي ډیپلوماسۍ ږغ پورته کړ او له هغه وخت راهیسي پرانستې ډیپلوماسي معیار ګرځېدلې ده. اوس د مذاکراتو او بین المللي تړونو او توافقاتو رپورټونه ثبتیږي او په ډاګه اعلانیږي. دا تغیر که څه هم چي د ډیموکراټیکي ادارې د پرنسیپ له پاره مهم دئ، ځیني تاوانونه هم لري. سرخلاصي مذاکرات مشکلات لري. که ستاسي د چنې وهلو ستراتیژي خلکو ته ښکاره سي نو بیا ستاسي د امتیازاتو د لاسته راوړلو وړتیا له منځه ځي. د عامه انتقادونو په صورت کي امتیاز لاسته راوړل ګران کار دئ. ښایي په ټول تاریخ کي ډېر مهم او مخفي مذاکرات په کال ۱۹۶۲ کی د کیوبا د بحران پر وخت د امریکې د متحده ایالاتو او شوروي اتحاد تر مینځ مذاکرات وه. په دې پټو مذاکراتو کي د امریکې متحده ایالاتو ژمنه وکړه چي د کیوبا څخه د شوروي اتحاد

د ذروي وسلو د بیرته ایستلو په صورت کي به د امریکې متحده ایالات د فیډل کاستړو د له منځه وړلوهڅي نه کوي.

## د ډیپلوماسۍ سر ته رسول:

د ډیپلوماسي تر ساینس د هنر برخه ډېره ده. پاخه ډیپلوماټان، د دې له پاره چي مؤثریت ولري، باید خپل روش د شرایطو سره عیار کړي. مګر سربېره پر دې هم، د ښه ډیپلوماسۍ له پاره ځیني مقررات وجود لري چي باید ځانونه په پوه کړو.

## مستقیم یا غیر مستقیم مذاکرات:

یوه موضوع چي ډیپلوماټان ورسره مخامخ کېږي هغه دا ده چي یو له بله سره مستقیمي خبري وکړي او که د میانځګړي پر لاس غیر مستتقیم مذاکرات سر ته ورسوي. مستقیم مذاکرات دا ګټه لري چي په هغه کي د غلط فهمۍ او غلط تفسیر مخه نیول کېدای سي. همدارنګه، مستقیم مذاکرات ژر سر ته رسېدلای سي.

غیر مستقیم مذاکرات هم خپل ځانته ګټي لري. مستقیم تماس تر یو حده د مشروعیت سمبول کېدای سي چي یو هیواد ښایي ونه غواړي یو بل هیواد ته یې ورکړي. د مثال په توګه، د جمهور رئیس بوش [د امریکې پخواني جمهور رئیس] اداري د ایران سره د مستقیمو او دوه اړخیزو مذاکراتو په هکله مقاومت کاوه، ځکه چي دې کار به و یوه داسی هیواد ته چي د امریکې حکومت یې په رسمیت نه پېژني ډیپلوماټیک بریالیتوب ور په برخه کړی وای. د امریکې متحده ایالات د ۱۹۸۰ کال راهیسي ایران په رسمیت ځکه نه پېژني چي د ایران حکومت مظاهره کوونکو ته اجازه ورکړه چي په تهران کي د امریکې سفارت اشغال او ۵۲ امریکایي

ډیپلوماټان د ۴۴۴ ورځو له پاره یرغمل ونیسي. سربېره پر دې هم، واشنګټن د ډیپلوماسۍ دروازه په مکمله توګه تړلې نه ده او د ایران سره یې یو لړ غیر رسمي تماسونه اوس هم ژوندي ساتلي دي.

## لوړ رتبه یا کښته رتبه ډیپلوماسي:

د ډیپلوماسۍ یو بل مهم اړخ دا دئ چې څوک باید ډیپلوماټیک مذاکرات سر ته ورسوي. و کوم کنفرانس ته باید لوړ او یا کښته رتبه ډیپلوماټان ولېږل سي، د یوه هیواد موقف باید د یوه لوړ رتبه مقام، لکه د دولت مشر، او یا که د کوم کښته رتبه مقام له خوا اعلان سي؟

لوړرتبه ډیپلوماسي خپل ځانته ګټې لري. د حکومت د رئیسانو له خوا تقریري او تحریري بیانیې په نورو پایتختونو کي جدي ګڼل کېږي. د امریکې د پخواني جمهور رئیس بوش دا خبره چې «ما په ډاګه ویلي دي چې موږ پر شمالي کوریا د یرغل خیال نه لرو،» د شمالي کوریا په موقف کي تغیر راوستی. پخوا شمالي کوریا د امریکې سره د رسمي معاهدې غوښتنه کوله، مګر وروسته یې موقف نرم سو او د امریکې د متحده ایالاتو او نورو هیوادو سره د خبرو له پاره تیاری وښود.

کښته رتبه ډیپلوماسي بیا هم په ځینو حالاتو کي په کار ده. په کښته رتبه کمیونیکېشن کي د انعطاف زمینه موجوده وي. د کابینې د یوه غړي له خوا په امتحاني توګه یو زورور تهدید اعلانېږي، مګر کله چې په وروسته کي نامعقول ثابت سي، د یو لوړ رتبه مقام له خوا ردېږي. د تایوان په تشنج کي، عمده مشرانو د نظامي تهدید په هکله د کښته رتبه مقاماتو څخه کار واخیست. د مثال په توګه، د چین نظامي ورځپاڼې (د آزادۍ د اردو ورځپاڼه)، چې د رسمي پالیسي جوړوونکو څخه ډېره لیري ده، په عصباني کوونکې لهجه تهدید وکړ، چې که تایوان آزادي اعلان کړي چین

به «له هیڅ ډول خونړۍ جګړې څخه مخ ونه ګرځوي». همدارنګه، په واشنګټن کي له قدرت څخه ډېر ليري د دفاع د وزارت يوه کښته رتبه مامور، د همدې موضوع په ارتباط، په ډېر قهر وغړومبېدی چي که چين پر تايوان حمله وکړي «له بې حسابه نتايجو سره به مخامخ سي».

## د تهديد يا بخشش [عوض] څخه کار اخستل:

يو بل ډيپلوماټيک انتخاب دا دئ چي د سوټي او که د زرد کي [يعني د تهديد که بخښښ] څخه کار واخيستل سي. د تهديد ډيپلوماسي هغه وخت مؤثره واقع کېدای سي چي ستاسي سره د تهديد د عملي کولو قدرت، تصميم او اعتبار وجود ولري. يو وخت کله چي چين د تايوان د خاصو مقاصدو څخه خبر سو، نو يې تايوان ته نژدې نظامي «ټرېنينګ» پيل کړ. د خپل نظامي قدرت د اظهارولو په منظور يې، د نورو کارونو تر څنګ، شپږ په اټومي کوپړۍ warhead سمبال کېدونکي ميزايلونه د تايوان سواحلو ته وروتوغول. په مقابل کي بيا د امريکې متحده اياالتو هم، د چين د غير مستقيم تهديد په وړاندي، ډېره لويه بحري قوه د تايوان اوبو ته ولېږله. د تهديد ډيپلوماسي نيمګړتياوي هم لري. که تهديد کار ونه کړي او يا تهديد عملي نه سي، نو ستاسي کمزوري ښيي چي ستاسي اوسني او هم ښايي راتلونکي مخالفينو ته به نور هم جرئت ورکړي. مګر خبره دا ده چي د نظامي تهديد څخه کار اخيستل او عملي کول ډېري پيسې او بشري قوه غواړي.

ځيني وختونه د بخښښ يا عوض ورکول تر تهديد زيات اثر درلودلای سي. د مرستو زياتول، تجارتي امتيازات او يا ځيني نور محسوس او يا هم سيمبوليک بخښښونه ښايي ډيپلوماټيک موافقتونه منځته راوړي. په کال ۲۰۰۷ کي د شمالي کوريا د ذروي وسلو د پروګرام

په هکله د مذاکراتو پیل ځکه ممکن سو، چي د امریکې متحده ایالاتو شمالی کوریا ته د سوو ملیونو ډالرو اقتصادي مرستو وعده وکړه.

## صراحت او یا قصداً مبهم والی:

د ډيپلوماسی ډېر کارپوهان په ډيپلوماټيک کميونيکېشن کي صراحت ډېر مهم بولي. مګر داسي وختونه راځي چي قصدي ابهام ته هم اړتيا پيدا کېږي. په تحريري او تقريري کميونيکېشن کي صراحت ځکه ګټور وي چي د غلط فهمی مخه نيسي. صراحت، په تېره بيا چي د يو ملي ليډر له خوا رامنځته سي، د رښتياني او واقعی تعهد ثر ګندوی وي.

ابهام هم کېدای سي ځيني وخت ښه ستراتيژي واوسي. د صراحت نستوالی يو هيواد په دې توانوي چي د لزوم په صورت کي خپل تعهد بيرته واخلي. په کال ۲۰۰۵ کي د چين پارلمان حکومت ته د تايوان په مقابل کي د قوې د استعمال واک په دې شرط ورکړ، چي که تايوان د آزادی غوښتني په لار کی «مهم ګامونه» واخلي، او يا «د سوله ييزي لاري [د چين سره د تايوان] د وحدت ټول امکانات له منځه ولاړ سي». ثرنګه چي د چين حکومت هيڅکله هم د تش په نامه پارلمان ثخه اجازه اخيستلو ته اړتيا نه لري، خو بيا هم دا عمل و تايوان ته يو قوي خبرداری وو. همدارنګه، د چين ليډرانو «مهم ګامونه» او «د سوله ييزي لاري د وحدت د امکاناتو له منځه تلل» تعريف نه کړل او خبره يې په آينده کي د مانور له پاره مبهمه پرېښووله.

## د وينا او يا د عمل له لاري کميونيکېشن:

په ډيپلوماسی کي د کميونيکېشن له پاره د خبرو [وينا] او يا د عمل ثخه کار اخيستل کېږي. تقريري او تحريري کميونيکېشن، که په

مستقیم ډول او یا هم د عامه ښر ګندوني له لاري مقابل لوري ته ورسول سي، ډېره ښه ډیپلوماټیکه ستراتیژي کېدای سي. واشنګټن ډېر ځله پیکینګ ته ډاډ ورکړی دئ چي د امریکې متحده ایالات د تایوان استقلال نه خوښوي او د تایوان د استقلال د یو اړخیز اعلان ملاتړ به ونه کړي. دې ډول کمیونیکېشن د چین بېره را لږ کړه چي په نتیجه کي یې د تایوان د استقلال غوښتونکي حکومت په وړاندي د چین عکس العمل هم لږ کړ.

د عمل له لاري مقابل لوري ته اشاره کول هم خپل ځای لري. کله چي د امریکې پخوانۍ خارجه وزیري، رایس، په کال ۲۰۰۵ کي جنوبي کوریا ته رسمي سفر وکړ، په عمل کي یې شمالی کوریا ته ور وفهمول چي د امریکې متحده ایالات به د شمالي کوریا په مقابل کي د جنوبي کوریا کلک ملاتړ وکړي. مګر ځیني وختونه د دې ډول فزیکي اشارو سره ستونزي هم رامینځته کېږي، او د خبري تر بیر ته اخیستلو د عمل څخه تر شا کېدل ډېر مشکل وي.

# اووم فصل

## بين الدولتي سازمانونه

## Intergovernmental Organizations

که څه هم چې د دولت مؤسسه له ډېر وخت راهیسي په بین المللي سیسټم کي عمده رول لوبوي، مګر بین الدولتي سازمانونه (Intergovernmental Organizations (IGO هم په بین المللي سیسټم کي په یو بل شکل سره عمده رول لوبوي. هیوادونه د دې ډول بین المللي سازمانو غړي وي. په دې توګه، بین الدولتي سازمان (IGO) پر شخصي او انفرادي غړیتوب ولاړ غیر دولتی سازمان nongovernmental (organization (NGO سره تفاوت لري.

### بين الدولتي سازمانو ته يوه لنډه کتنه:

د بين الدولتي سازمانو تر منځ بيخي زيات تفاوت وجود لري. ځيني يې، لکه د ملګروملتو مؤسسه، ډېر غړي لري. ځيني بيا، لکه د افريقا د ستر جهيل د هيوادو اقتصادي ټولنه، يوازي درې غړي لري. د بين الدولتي سازمانو د طبقه بندۍ يو بل شکل د وظيفې پر اساس دئ. د ملګرو ملتو او اروپايي اتحاديې په شان څو هدفي multipurpose بين الدولتي سازمانونه پراخ او بېلابېل وظايف سر ته رسوي، او د عربو د وجهي صندوق Arab Monetary Fund په شان اختصاصي بين الدولتي سازمانونه بيا ډېر محدود وظايف سر ته رسوي. سربيره پر دې، د جهاني بانک په شان

نړیوال بین الدولتي سازمانونه او د افریقایي اتحادیې African Union په شان سیمه ایز بین الدولتي سازمانونه وجود لري.

د بین الدولتي سازمانو مثالونه په تاریخ کي هم موندلای سو. داسي ویل کېدای سي، چي د بین الدولتي سازمان د یو ابتدایي شکل اساس په ۴۷۸ قبل المیلاد کي اینبوول سوی دئ، چي په هغه کي د یونان ښار دولتونو City States د فارس Persia د تهدید په مقابل کي د دیلاین لیګ [تړون] Delian League منځته راووړ. که څه هم چي دا لیګ یو ابتدایي اتحاد وو، مګر د بین الدولتي سازمان دوه مشخصات یې په ځان کي درلودل. لومړی دا چي دایمي شکل یې درلود. دوهم دا چي، دې لیګ د نماینده ګانو یوه شورا درلوده چي غړي یې د ښاري –دولتو له خواټاکل کېدل.

## د بین الدولتي سازمانو وده اوانکشاف:

د بین الدولتي سازمانو د منځته راتلو تیوري چي هر څه وي، بین الدولتي سازمانونه په اصل کي د اوسني عصر یوه پدیده ګڼله کېږي. د ۱۸۰۰ میلادي کلونو په دوران کي په شمېر لږ بین الدولتي سازمانونه چي د مشخصو مافوق ملتي چارو سره یې سروکار وو، په نړۍ کي موجود وه. د رآین د بیړۍ چلولو مرکزي کمیسیون Central Commission for the Navigation of the Rhine چي په کال ۱۸۱۵ کي منځته راغی، تر ټولو پخوانی او تر اوسه هم پاته بین الدولتي سازمان دئ. د تلګراف بین المللي اتحادیه (چي اوس یې نوم د ټیلي کمیونیکیشن بین المللي اتحادیه دئ) په کال ۱۸۶۵ کي تأسیس سوه او تر اوسه هم وجود لري تر ټولو پخوانی بین الدولتي سازمان دئ چي نړیوال غړي لري. سره له دې هم، د ۱۸۰۰ کلونو په ټول دوران کي یوازي شپږ بین الدولتي سازمانونه منځته راغلل.

د ۱۹۰۰ کلونو په لومړیو برخو کي د بین الدولتي سازمانو مینځته

راتلل په تدریجي توګه پیل سول. د پېړۍ په پیل کي د هاګ سیسټم Hague System تشکیل سو، چي د وسله والو نښتو د مخنیوی له پاره لومړنی بین الدولتي سازمان وو. د هاګ د سیسټم نوم ځکه ورکړه سو، چي د ۱۸۹۹ او هم د ۱۹۰۷ دوه کنفرانسونه یې د هالنډ د هاګ په ښار کي جوړ سول. د دې سیسټم اهداف دا وه چي وسلې محدودې کړي، د بین المللي مناقشو د منځګړیتوب لپاره کړنلار او طرزالعمل مینخته راوړي، او د وسله والو نښتو مخه ونیسي. دوهم کنفرانس نور هم جامع وو، چي د اروپا، شمالي امریکا، او لاتیني امریکا ۴۴ هیوادو ګډون پکښې کړی وو. د سازماني پلوه یې یوه محدوده عمومي اسامبله او هم یو قضایي سیسټم درلود. د هاګ دریم کنفرانس د کال ۱۹۱۵ لپاره په پلان کي نیول سوی وو، مګر د لومړۍ عمومي جګړې (۱۹۱۸–۱۹۱۴) له امله سر ته ونه رسېدی.

تر جنګ وروسته، د ورسایلیس Versailles د سولي کنفرانس (۱۹۱۹)، د نوي نړیوال نظم د راوستلو لپاره، د نورو شیانو په اړخ کي، د ملتونو ټولني League of Nations د تأسیس په لټه کي سو. د ملتونو ټولني [جامعه ملل یې هم بولي]، د هاګ د سیسټم په پرتله، یو ډېر پرمختللي سازماني ساختار درلود. که څه هم په اصل کي یو سوله ساتونکی سازمان وو، د ملتونو ټولني د اجتماعي او اقتصادي همکاریو ځیني عناصر یې هم په ځان کي درلودل. له بده مرغه سوله بیا بریالۍ نه سوه، او د ملتونو ټولنه League of Nations د دوهمي عمومي جګړې د اور په لمبو کي مړه سوه.

سره له دې هم، د هاګ د سیسټم او د ملتونو ټولني تر شا اساسي مفکوره مړه نه سوه. د دوهمي عمومي جګړې په پای کي تر ۵۰ زیات هیوادونه سره کښېنستل او په ۱۹۴۵ کال کي یې د ملګري ملتونو United Nations اساس کښېښود. د ملتونو د ټولني په شان، د ملګري ملتونو

اساسي هدف هم د سولې ساتنه وه، مګر پر دې سربېره د بشري ټولني د اجتماعي او اقتصادي بهبود چاري هم ور په غاړه سوې. د دې تعهد د سر ته رسولو لپاره، د ملګري ملتو سازمان اوس په پراخه توګه د نړۍ د زيات شمېر مسايلو سره سروکار لري. د ملګري ملتونو د جوړېدو په شاوخوا کلونو کي د بين الدولتي سازمانو په شمېر او نوعيت کي چټک پرمختګ راغی. په تېره بيا د ۱۹٦۰ او ۱۹۷۰ کلونو په دوران کي، چي ډېري مستعمرې آزادي سوې، زيات نوي بين الدولتي سازمانونه منځته راغلل. په آسيا، افريقا او نورو سيمو کي آزاد سوي هيوادونو لاسونه سره ورکړل او د خپل اجتماعي او اقتصادي پرمختګ لپاره يې سيمه ييز بين الدولتي سازمانونه منځته راوړل. په کال ۱۹۸۴ کي د بين الدولتي سازمانو شمېر ۳٦۵ ته رسېدی. په راوروسته کلونو کي يې په شمېر کي لږوالی راغی چي په کال ۲۰۰۵ کي يې شمېر۲۴٦ ته راټيټ سو. زياتره هغه بين الدولتي سازمانونه له منځه ولاړل چي سيمه ييز وه او يا يې د نورو بين الدولتي سازمانو کارونه تکرارول.

## د بين الدولتي سازمانو د انکشاف عوامل:

سمدستي محرکه قوه چي به يې هر څه وي، ټول بين الدولتي سازمانونه ځکه منځته راغلي دي چي دولتونو د ادرک کړه چي د بين الدولتي سازمان له لاري «دوی کولای سي هغه څه لاسته راوړي چي په يوازي سر يې لاسته نه سي راوړلای». د انکشاف لپاره يې د لاندي عواملو يادونه کولای سو.

### ۱. د بين المللي تماس زياتوالی:

د کميونيکېشن او حمل و نقل په تکنالوجي کي د انقلاب له برکته د نړۍ د دولتونو تر منځ تماسونه ډېر زيات سوي دي. د دې له پاره چي دا

ډول تماسونه دوامداره او په یو تنظیم کښې ایستل سي د بین الدولتي سازمان په شان یو ساختار ته اړتیا ستیه.

**۲. په نړۍ کې یو پر بل باندي د تکیه کولو زیاتوب:**

صندوق وجهي المللي بین International Monetary Fund (IMF) او جهاني بانک هغه دوه بین الدولتي سازمانونه دي، چې د بین المللي اقتصادي موضوعاتو سره سروکار لري مګر د انفرادي هیوادو سره اړه نه لري.

**۳. د مافوق ملتي** transnational **پرابلمونو پراخېدل:**

د ځینو مسایلو حل چې زیات شمېر هیوادونه متأثره کوي، د یوه واحد دولت تر وس وتلی وي. له دې ډول مسایلو څخه یو هم مافوق ملتي جرایم دي چې د بین المللي جرایمو پولیسي سازمان International Criminal Police Organization (Interpol) سروکار ورسره لري.

۴. واړه (کوچني) دولتونه هڅه کوي د مشترک عمل له لاري قوت لاس ته راوړي ځرنګه چې نظامي او اقتصادي قدرت په یو څو هیوادو کي متمرکز دئ، نو واړه او نسبتاً کمزوري هیوادونه هڅه کوي چې د همکارۍ له لاري خپل تأثیر وښندي. د مثال په توګه ۱۱۶ لږ پرمختللو هیوادو د بېطرفو هیوادو نهضت Nonaligned Movement او د ۷۷ ګروپ (G-۷۷) منځنه راوړ څو په اقتصادي برخه کي یو له بله سره همکاري وکړي. د دوی یوه ستراتیژي دا ده، چې د «مشترکو مذاکراتو» له لاري پر پرمختللي هیوادو باندي فشار واچوي څو دوی لږ پرمختللو هیوادو ته خپلي انکشافي مرستي زیاتي کړي، د لږ پرمختللو هیوادو د صادراتو په مقابل کي ممانعتونه لیري کړي، او هم د لږ پرمختللو هیوادو په ګټه نور ګامونه واخلي. دا فکتور په ۱۹٦۰ او ۱۹۷۰ کلونو کي د بین الدولتي سازمانو د شمېر د زیاتوالي لوی علت دئ.

## د بین الدولتي سازمانو رول:

د بین الدولتي سازمانو د شمېر له زیاتېدو سره موږ باید ځانونه پوه کړو، چې دا سازمانونه څه کوي او موږ څه غواړو چې دوی یې سرته ورسوي. په عمده توګه بین الدولتي سازمانونه درې عمده رولونه لوبوي: د متقابل عمل د میدان په توګه رول، د متقابلو همکاریو د منځته راوړلو رول، او د ماورای ملتي سازمان رول. اوس یې هر یو جلاجلا تشریح کېږي.

## د متقابل عمل میدان [زمینه]:

د بین الدولتي سازمانو یو رول دا دئ، چې غړو دولتو ته دا زمینه برابروي چې د خپلو ځانګړو ملي ګټو لپاره کار وکړي. په دې هکله څوک په ښکاره بیان نه کوي، مګر د ملګروملتو او هم د نورو بین الدولتي سازمانو په دننه کي د خپلو منافعو لپاره د هیوادو او یا د هیوادو د یوې ډلي سیاسي مبارزه له ورایه ښکاره ده. په ۲۰۰۵ کال کي د امریکې د متحده ایالاتو د سنا د خارجي روابطو د کمیسیون مشر دا خبره په ډاګ پېیلې وکړه، چې د ملګرو ملتو په سازمان کي د امریکې د متحده ایالاتو د نوي سفیر «عمده سیاسي رسالت باید دا وي چې د امریکې د متحده ایالاتو د ملي امنیت او خارجي پالیسیو لپاره بین المللي ملاتړ تر لاسه کړي». دا به وکتل سي چې په راتلونکي کلونو کي به د جمهور رئیس اوباما اداره، چې د امریکې د سفیر مقام یې د کابینې و درجې ته رالوړ کړ، د ملګرو ملتو او د امریکې د متحده ایالاتو تر منځ روابط څرنګه پر مخ بیایي.

ښکاره خبره ده، چې نور هیوادونه هم د خپلو ملي ګټو د ساتني لپاره د دې ډول عملي سیاست realpolitik څخه په کار اخیستلو سره د امریکې د متحده ایالاتو د پالیسیو سره مخالفت کولای سي. د مثال په توګه، په ۲۰۰۳ کال کي کله چې د امریکې متحده ایالاتو د عراق د حملې په هکله د

ملګرو ملتو د ملاتړ تر لاسه کولو لپاره د امنیت په شورا کي مانورې کولې، فرانسه او روسیه (چي دواړه د امنیت په شورا کي د ویټو حق لري) او همدارنګه جرمني د مخالفینو په سر کي ولاړ وه. پر عراق باندي د حملې په هکله د دوی پر نظریاتو سربېره، دې هیوادو غوښتل چي له یوې خوا خپل سیاسي استقلال ښکاره کړي او له بلي خوا یې غوښتل چي د متعرضي او مغروري امریکې متحده ایالاتو ته تناو ورواچوي [مخه یې ونیسي]. دا خبره د فرانسې د پخواني جمهور رئیس جاک شیراک Jacques Chirac په وینا کي ښکاره ده، «فرانسه ځان د امریکایانو یو ملګری بولي، مګر حتمي نه ده چي یو له چاپلوسانو څخه به یې هم وي. کله چي موږ باید یو څه ووایو، موږ یې وایو». همدارنګه، د روسیې یو تحلیلګر یادونه کوي چي د ده د هیواد لیډران «نه غواړي ملګري ملتونه کم ارزښته کړل سی، مګر دا هم نه غواړي د امریکې د متحده ایالاتو پر هژموني [تفوق] ولاړ نړیوال نظم رامنځته سي».

د بین الدولتي سازمانو څخه د متقابل عمل د میدان په حیث کار اخیستل ځیني ګټې هم لري. یوه ګټه یې دا ده چي حتی که یو کار د یوه هیواد د ملي ګټو لپاره په عملي سیاست real politik باندي پیل سي، بیا هم څرنګه چي پروسه د بین الدولتي سازمان په دننه کي سر ته رسېږي، همکاري او مصالحه ورسره ملګرې کېږي. بله ګټه یې دا ده چي ځیني وخت که یو بین الدولتي سازمان یو عمل تصویب کړي نو بیا د نورو هیوادو لپاره له سیاسي پلوه د هغه عمل تأئیدول او یا د هغه په هکله عملي ګام اخیستل اسانه وي. د مثال په توګه، په ۱۹۹۱ کال کي د عراق په مقابل کي د نظامي عمل په وړاندي د ډېرو هیوادو توافق ځکه موجود وو، چي د ملګرو ملتونو ملاتړ ورسره ملګری وو. همدارنګه، د ملګرو ملتونو د ملاتړ له امله، (د ۲۰۰۳ کال د حملې پر خلاف) د ځینو اسلامي هیوادو لپاره هم له

سياسي پلوه اسانه وه، چې د عراق په حمله کي، چي د عيسوي قواوو (د امريکې متحده ايالات، برتانيه او فرانسه) له خوا سر ته رسېدل، برخه واخلي.

## د همکارۍ مرکز:

د بين الدولتي سازمانو بل رول دا دئ چي د دولتو او نورو بين المللي اکټرانو تر منځ همکارۍ منځته راوړي. کوفي عنان، د ملګرو ملتو پخواني سرمنشي، دې ټکي ته ښه اشاره کړې ده چي د ملګري ملتو «غړي هيوادونه د ډېرو نوو او بې سارو تهديدونو او چلينجونو سره مخامخ دي. دا تهديدونه او چلينجونه تر سرحداتو اوښتي دي او د هيڅ يوه هيواد په وس پوره نه ده چي په يوازي سر معامله ورسره وکړي». همدا دليل دئ چي هيوادونه د امنيت، محيط، اقتصاد او نورو مسايلو په برخه کي يو له بله همکاري سره کوي. د ملکي هوانوردۍ بين المللي سازمان او د هغه په شان نور بين الدولتي سازمانونه د مشخصو اړتياوو له مخي منځته راغلي دي او د خپلو عملياتو په جريان کي يې د لازياتو همکاريو لپاره زمينه برابره کړې ده.

## ماورای ملتي سازمان:

ځيني خلک په دې عقيده دي چي نړۍ د يو بين المللي حکومت د مينځته راتلو خوا ته په حرکت کي ده. يو محقق ليکي، "د اوسنۍ بين المللي صحنې پرله پېچلتوب پخپله د يو مناسب او مؤثر نړيوال حکومتي سيستم مينځته راتلل ايجابوي". د دې نظريې د خيالي تصور له مخي، بين الدولتي سازمان د ماورای ملتي سازمان supranational organization رول لوبوي چي د غړو هيوادو د حاکميت sovereignty د بې اغېزې کولو

قانوني واک ولري.

ځيني بين الدولتي سازمانونه اوس هم په خاصو حالاتو کي يوه اندازه ماورای ملتي صبغه ځکه لري چي ډېر دولتونه په عمل کي د بين الدولتي سازمانو واک ته غاړه ايږدي. د مثال په توګه، که نړيوال تجارتي سازمان World Trade Organization(WTO) فيصله وکړي چي د کوم هيواد کومه پاليسي د دې سازمان د اساسی تړون، يعنی د ګمرکي تعرفاتو او تجارت له عمومي موافقتنامې General Agreement on Tariffs and Trade سره، تناقض لري، نو هيوادونه په عمومي صورت د هغه فيصلې ته غاړه ايږدي. تر ټولو زيات ماورای ملتي واک، په سيمه ييزه سطحه کي، په اروپايي اتحاديه European Union کي پروت دئ. اروپايي اتحاديه نه يوازي د يوه مکمل حکومت ځيني ساختارونه په ځان کي لري، بلکي پاليسي ګاني جوړوي، محکمې لري، او ماليات راټولوي. که څه هم چي اوس لا محدود شکل لري، اروپايي اتحاديه داسي وظايف سرته رسوي لکه د اروپا يو حکومت چي وي.

## جهاني بين الدولتي سازمانونه

### ملګري ملتونه

د بين الدولتي سازمانو د فعاليتونو په لړ کي د ملګرو ملتونو United Nations فعاليتونه ډېر څرګند او د اهميت وړ دي. له دې امله، موږ په دې برخه کي د بين الدولتي سازمان په حيث د ملګرو ملتو يوه عمومي مطالعه کوو. موږ په ملګرو ملتونو کي د غړيتوب او رايی ورکولو مسايل، اجرائيه ليډرشيپ، اداري او مالي چاري او هم د ملکي ملتو فعاليتونه ګورو.

## غړيتوب اورايه ورکول:

په اصل کي، هر بين الدولتي سازمان يو بين المللي سازمان دئ چي دوه يا زيات هيوادونه يې غړيتوب لري. ځکه نو د يو بين الدولتي سازمان په فعاليت باندي د پوهېدلو لپاره د هغه د غړيتوب په ساختار او د رايي ورکولو په پروسه باندي ځان پوهول په کار دي. د مثال په توګه، په دې خبره ځان پوهول ډېر ګران دي، چي ولي د ملګرو ملتو پنځه غړي هيوادونه د امنيت په شورا کي د ويټو حق لري او نور ۱۸۷ هيوادونه دا حق نه لري.

## د غړيتوب عمومي مسايل:

د تيورۍ له مخي، په ملګرو ملتونو او هم په زياتو نورو بين الدولتي سازمانو کي د غړيتب دروازه و هر هغه دولت ته خلاصه ده چي د نوموړي بين الدولتي سازمان په جغرافيايي ساحه کي پروت وي او هم د هغه اصول او اعمال ومني. مګر په واقعيت کي، ځيني وخت سياست هم پر اضافه کېږي. نن ورځ، د واتيکان ماسېوا، د ملګرو ملتو غړيتوب جهاني شکل اخيستي دئ، مګر خبره هر وخت داسي نه وه.

د نوي غړو د شموليت معيار ځيني وختونه د سياسي جنجالونو موضوع ګرځېدلې ده. د مثال په توګه، يو جنجال هغه وخت پېښ سو، چي په ۱۹۹۸ کال کي د ملګرو ملتو عمومي اسامبلې په زيات اکثريت سره فلسطينيانو ته يو ډول غير رسمي غړيتوب ورکړ. دوی د رايي حق نه لري، مګر کولای سي د ملګرو ملتو په مباحثو کي برخه واخلي او د نورو دولتو په شان د ملګرو ملتو ځيني وظايف سر ته ورسوي.

د جانشين [وارث] دولت موضوع هم سياسي جنجال ګرځېدای سي.

کله چي ملګرو ملتو روسیه د پخواني شوروي اتحاد د جانشین په توګه په رسمیت وپېژندله، د دې معنی دا وه، چي د ملګرو ملتو د امنیت په شورا کي د پخواني شوروي اتحاد دايمي چوکۍ او د ویټو حق هم روسیې ته په میراث ورسېدی. په مقابل کي بیا، په ۱۹۹۲ کال کي ملګرو ملتونو د بلګراد حکومت، چي د سربیانو تر تسلط لاندي وو، د پخوانۍ یوګوسلاویې د جانشین په توګه په رسمیت ونه پېژندی. د ملګرو ملتو عمومي اسامبلې د یوګوسلاویې څخه وغوښتل چي د غړیتوب لپاره له سره درخواست وکړي، چي په ۲۰۰۰ کال کی یې درخواست ومنل سو.

## د بین الدولتي سازمان په ساختار کي دننه د غړیتوب مسایل:

د بین الدولتي سازمان د تصمیم نیولو په پروسه کي دا حتمي نه ده، چي د ټولو دولتو نمایندګان باید برخه پکښي واخلي. د ملګرو ملتو او همدارنګه نورو بین الدولتي سازمانو په مرکز کي عموماً د ټولو غړو دولتو د نماینده ګانو څخه جوړه یوه بشپړه تنه [بدنه] وجود لري. د ملګرو ملتو عمومي اسامبله د ملګرو ملتو بشپړه تنه تشکیلوي. په بین الدولتي سازمانو کي دا ډول اسامبلې ګاني [چي د ټولو غړو دولتو د نماینده ګانو څخه متشکلي وي] عموماً د سازمان په دننه کي د ډېر قدرت لرونکي وي. په بین الدولتي سازمانو کي د محدودو دولتو د نماینده ګانو څخه جوړي شوراګاني councils هم وجود لري. د تیورۍ له مخي، د دې ډول کوچنیو ګروپونو مؤثریت تر لویو اسامبلو زیات وي. د مثال په توګه، د ملګرو ملتو اقتصادي او اجتماعي شورا Economic and Social Council د ۵۴ غړو هیوادو له نماینده ګانو څخه جوړه ده، چي د عمومي اسامبلې له خوا د درو کلونو له پاره د یو پلان له مخي ټاکل کېږي. د ملګرو ملتو د امنیت شورا Security Council پنځه دایمي غړي لري. (دا پنځه غړي چین، فرانسه،

روسیه، برتانیه او د امریکې متحده ایالات دي). دا پنځه هیوادونه د دوهمي عمومي جګړې په پاي کي عمده فاتح قدرتونه ول او داسي فکر کېدی چي دوی به په نړۍ کي د سولي د ساتلو په برخه کي خاص رول ولوبوي. د دې نظریې پر اساس چي د غړو د شمېر محدود ساتل مؤثریت زیاتوي، د امنیت شورا د غړو شمېر ۱۵ تنو ته کښل سوی دئ، چي ۱۰ غړي یې غیر دایمي دي او د عمومي اسامبلې له خوا د دوو کالو له پاره ټاکل کېږي. دا چي د امنیت شورا د پنځو قدرتمندو دایمي غړو پر رول زیات تأکید کېږي، باید داسی تعبیر نه سي چي ګواکي نور غیر دایمي ۱۰ چوکۍ لږ اهمیت لري. سره له دې چي د پنځو دایمي غړو په پرتله دوهمه درجه اهمیت لري، د دې چوکیو د په لاس راوړلو لپاره ډېر تلاښونه کېږي. د دې غیر دایمي غړو سره د دوی د همکارۍ د په لاس راوړلو لپاره د امریکې د متحده ایالاتو، او ښایي د نورو قدرتمندو هیوادو له خواهم، زیاتي اقتصادي مرستي کېږي.

## د امنیت شورا د غړیتوب پر سر مناقشه:

د امنیت شورا د پنځو غړو دایمي والی او د ویټو حق درلودل د ملګرو ملتو یوه جنجالي موضوع ده. د نارضایتۍ لپاره څو سرچینې وجود لري. یو انتقاد د ډیموکراسۍ نسته والي دئ. د زمبیا جمهور رئیس استدلال کوي چي د امنیت شورا نور نه سي کولای د نړۍ د نورو هیوادو په هکله، چي د امنیت شورا غړي کېدای نه سي، تصمیم ونیسي. بل انتقاد دا دئ چي د امنیت په شورا کي جغرافیوي او ډیموګرافیک [نفوس] توازن وجود نه لري. اروپا او شمالي امریکا د امنیت شورا د پنځو څخه څلور دایمي چوکۍ په اختیار کي لري او دا څلور دایمي غړي هیوادونه په عمده توګه سپین اروپایي عیسویان دي. بل انتقاد بیا دا هم دئ، چي دایمي غړي د قدرت د

واقعیتونو درست انعکاس نه کوي. لکه په ملګروملتو کې د جرمني هیئت چې وايي، "د امنیت شورا اوسنی حالت د نن ورځې د نړۍ انعکاس ځکه نه سي کولای چې په نړۍ کې د ۱۹۴۵ کال راهیسې بېساري تغیرات راغلي دي". د دې لید په حساب، جرمني، هندوستان، جاپان او ځني نور قدرتمند هیوادونه د خپلو ځانو لپاره د دایمي چوکیو غوښتنه کوي.

په دې وروستیو کلونو کې د امنیت شورا د پراخوالي په هکله یو شمېر وړاندیزونه منځته راغلي دي. ځینی غواړي چې د دایمي غړو شمېر زیات سي، مګر تر نن ورځې پوري په دې هکله کومه موافقه منځته نه ده راغلې. د دایمي غړو د ویټو د حق د له منځه وړلو وړاندیزونه هم سوي دي. ډېر هیوادونه د ملګروملتو د ریفورم طرفدار دي، مګر د ملګروملتو په منشور او د امنیت شورا په ترکیب کی تغیر راوستل دوه مهم ممانعتونه په مخ کي لري. لومړی، په منشور کي تغیر راوستل د امنیت شورا د دوه پر درې غړو منظوري لازموي. د امنیت شورا پنځه دایمي غړي نه غواړي د نوی دایمي غړو په زیاتولو سره خپل نفوذ کمزوری کړي، او د ویټو د حق د له منځه تلو ته خو بیا بېخي زړه نه ښه کوي. د پنځو دایمي غړو تر مینځ خاصو رقابتونو هم خپل تأثیر ښندلی دئ. د مثال په توګه، چین نه غواړي دوه قدرتمند اسیایی رقیبان يې، لکه جاپان او هندوستان، دایمي چوکۍ لاسته راوړي. د چین بل شکایت دا دئ چي جاپان د دوهم عمومي جنګ په وخت کي د خپل تعرض او ظلمونو په هکله پوره بخښنه نه ده غوښتې. دوهم، په منشور کي تغیر راوستل د عمومي اسامبلې دوه پر دریمه رایي ایجابوي. دا کار هم د ۱۹۲ هیوادو تر مینځ د بېلابېلو حساسیتونو له امله ډېر ګران کار دئ. د مثال په توګه، د هندوستان د دایمي چوکۍ په هکله پاکستان ډېر حساسیت ښیي.

## لیډرشیپ:

د یوه سازمان لپاره بې له یو اداري واحد څخه فعالیت کول ډېر ګران کار دئ، ځکه نو تقریباً ټول بین الدولتي سازمانونه یو اجرائیه رئیس chief executive officerلري. د ملګرو ملتو اداري ساختمان دارالانشاء Secretariat بلل کېږي او عمومي منشي يې اجرائیه رئیس دئ. د ملګرو ملتو عمومي منشي او همدارنګه د ډېرو بین الدولتي سازمانو مشران یوازي اداره کوونکي نه دي؛ دوی په عین وخت کي ډېر مهم سیاسي شخصیتونه هم دي.

## د ملګرو ملتو د عمومي منشی ټاکل:

په رسمي اوظاهري توګه د امنیت شورا یو یا څو کاندیدان د عمومي منشي د چوکۍ لپاره معرفي کوي او عمومي اسامبله له هغو څخه یو کاندید د پنځو کلونو لپاره انتخابوي. مګر په واقعیت کي دومره ډیموکراسي هم نه ده. په عمل کي د امنیت شورا یوازي یو کاندید و عمومي اسامبلې ته وړاندي کوي. سربېره پر دې، د دایمي غړو څخه هر یو يې یو کاندید ویټو کولای سي. په ۲۰۰۶ کال کي د ملګرو ملتو د عمومي منشی بان کي مون Ban Ki-moon انتخاب نسبتاً لږ جنجالي ښکارېدی، مګر بیا هم د ټړلو دروازو شا ته د ډېرو سیاسي مانورو څخه کار واخیستل سو. په لومړي سر کي اووه کاندیدان نومول سوي ول او هر کاندید د خپل هیواد له خوارا وړاندي سوی وو. شپږ کاندیدان د اسیایي هیوادو څخه رامخته سوي ول (افغانستان، هندوستان، اردن، جنوبي کوریا، سیریلانکا، او تایلینډ). اووم کاندید د لاتویا څخه وو، چي په دې مسابقه کي یوازنۍ ښځه وه، او د ګټلو واقعي چانس يې ځکه نه درلود، چي د عمومي منشي چوکۍ، په غیر رسمي ډول، په منطقوي حساب نوبتي شکل لري.

## د ملګرو ملتو اوسنی عمومي منشي:

بان کي مون Ban Ki-moon د ۲۰۰۷ کال د جنوري د میاشتي په لومړۍ ورځ د ملګرو ملتو د اتم عمومي منشي په توګه خپله وظیفه اشغال کړه. د انتخابېدلو پر وخت ۶۲ کلن بان کي مون د جنوبي کوریا د خارجه چارو او تجارت وزیر وو. ده په واشنګټن کي د جنوبي کوریا په سفارت کي ماموریت کړئ او په ۱۹۸۵ کال کي یې د امریکې د هارورډ پوهنتون Harvard University څخه د عامه اداري public administration په برخه کي د ماسټرۍ ډیپلومه تر لاسه کړه.

بان کي مون، تر ده مخکي دوو عمومي منشیانو په شان، ځکه وټاکل سو چی د یوه نرم او آرام ډیپلومات په توګه یې شهرت درلود. له ده څخه دا توقع نه کېدله چي په نړیوال سیاست کي د ملګرو ملتو د مستقل رول په پر مخ بېولو کي قاطعیت وښیي. مګر، نه بوتروس غالي او نه هم کوفي عنان دې توقعاتو ته غاړه کښېښووله. دا معلومه نه ده چي بان کي مون به په آینده کي څه وکړي. دی خپله د ځان په هکله وایي: "زه به ښایي ظاهراً نرم ښکارم، مګر د لزوم په صورت کي داخلي قوت راسره ملګری دئ".

د امریکې متحده ایالات له بان کي مون څخه په خاصه توګه دوې غوښتني لري. یوه یې دا ده چي دی په ملګرو ملتونو کي اداري اصلاحات راولي، چي بان کي مون دا ژمنه کړې ده. دوهمه غوښتنه یې دا ده چي بان کي مون د بوتروس غالي او عنان په پرتله د امریکې د متحده ایلاتو د غوښتنو زیات خیال وساتي. دا به وکتل سی چي بان کي مون به په راتلونکي کي د امریکې څومره خیال ساتي. مګر که د بان کي مون د کار پیل ته وکتل سي، ښایي امریکا یو ځل بیا مایوسه سي. د کار تر پیل دوې هفتې وروسته بان کی مون د امریکې له جمهور رئیس او نورو لوړ رتبه مامورینو سره د خبرو لپاره واشنګټن ته سفر وکړ. واشنګټن غوښتل بان

کي مون دې ته تشویق کړي چي په عراق کي د ملګرو ملتو د لا نوري زیاتي برخي اخیستني سره موافقه وکړي، څو د بوش د ادارې اوږې یو څه سپکي سي. د کوفي عنان په شان، بان کي مون هم دا غوښتنه په دې دلیل رد کړه چي د امریکې متحده ایالات نه سي کولای د ملګرو ملتو د اصولو په خلاف په عراق کي مرداری جوړ کړي او بیا یې د ملګرو ملتو څخه د پاکولو توقع وکړي. د خپل سلف په شان، بان کي مون هم د امریکې د متحده ایالاتو څخه وغوښتل چي د ملګرو ملتو په وړاندي خپل مالي تعهدات پر ځای کړي. د واشنګټن پر ناخوښۍ دا خبره هم ورزیاته سوله کله چي بان کي مون د امریکې څخه وغوښتل چي د کیوبا په ګوانتانامو کي د امریکې بحري اډې، چیري چي د ۲۰۰۱ کال راهیسي په اصطلاح تروریستان پکښي بندیان دي، وتړي.

## اداري او مالي چاري:

هیڅ یو سازمان بې له منظمو تشکیلاتو او بودجوي منابعو بریالی کېدای نه سي. د ملګرو ملتو او همدارنګه نورو بین الدولتي سازمانو لپاره هم د خپلو وظایفو د سر ته رسولو لپاره اداري او مالي چاري ډېری مهمي دي.

## اداره:

عمومي منشي د دارالانشاء نور مهم مامورین ټاکي. مګر، د دارالانشاء د مامورینو په ټاکلو کي باید عمومي منشي د لویو قدرتونو د غوښتنو خیال وساتي، او همدارنګه باید د دارالانشاء د غړو جغرافیوي ترکیب ته پاملرنه وکړي [یعني د دارالانشار مامورین باید د بېلابېلو سیمو او هیوادو څخه وټاکل سی] وخت ناوخته د دې موضوع په هکله بحثونه راپورته سوي دي، خو په دې اوس کلونو کي په نیویارک کي د ملګرو ملتو په مرکزي

قرارګاه او هم د جینیوا، نایروبي او ویانا په سیمه ییزو دفترو کي د مامورینو د زیاتوالي او مؤثریت په هکله زیات انتقادونه رامنځته سوي دي. په یوه حساب، د ملګرو ملتو سازمان هم د نورو بین الدولتي سازمانو په شان، سره پړسېدلی دئ، بېکاره او بې مسئولیته بیوروکراسي ځني جوړه سوې ده.

## اداري ریفورم:

د ملګرو ملتو انتقادکوونکي، په تېره بیا په متحده ایالاتو کي، هر وخت دا تور لګوي چي د ملګرو ملتو سازمان ډېر مصرف لري، ډېر زیات خلګ یې استخدام کړي دي، او د چارو اداره یې ډېره کمزورې ده. په جواب کي بیا د ملګرو ملتو مدافعین وایي چي دا تورونه د متوازني ارزیابۍ پر ځای د ملګرو ملتو سره د دښمنۍ انعکاس دئ. مګر حتی د ملګرو ملتو مدافعین هم پر دې توافق سره لري چی سازمان و اصلاح او ریفورم ته اړتیا لري. د عمومي منشي په توګه تر ټاکل کېدلو وروسته کوفی عنان د ملګرو ملتو عمومی اسامبلې ته راپور وړاندي کړ، چي: "د تېري نیمي پېړۍ په جریان کي د ملګرو ملتو ځینی برخي سره متلاشي، ځینی یې تکراري، او ځیني نوري یې بیا شخي [انعطاف ناپذیره] سوي دي". په دې وروستیو وختونو کي، زیات اداري اصلاحات منځته راغلي دي. د ملګرو ملتو په عادي بودجه کي معتدل زیاتوالی راغلی دئ، او سره له دې چي د ملګرو ملتو سوله ساتونکي عملیات زیات سوي دي د مامورینو شمیر یې ثابت پاته سوی دئ. سره له دې هم، د امریکې متحده ایالات او هم ځینی نور حکومتونه د ملګرو ملتو د اداري مؤثریت په هکله ناخوښي څرګندوي.

## مالي چاري:

ټول بین الدولتي سازمانونه د خپلو عملیاتو د سر ته رسولو لپاره مالي

منابعو ته اړتیا لري. حکومتونه هم مالي منابعو ته اړتیا لري، مګر دوی په قانوني توګه د مالیاتو د وضع کولو او راټولولو واک لري. په مقابل کې، بین الدولتي سازمانونه د خپلو غړو د مالي ملاتړ د لاسته راوړلو لپاره ډېر لږ واک لري.

د ملګري ملتو د بودجې سیسټم یو څه پرله پیچلی دئ. په سازماني لحاظ ملګري ملتونه دوه ډوله بودجه لري. یوه عادي بودجه ده چې د ملګرو ملتو مرکز، د هغه بېلابېل اورګانونه او عمده اداري واحدونه په بر کې نیسي. بله د سولې ساتنې بودجه ده چې د امنیت شورا د عملیاتو مصارف په بر کې نیسي. د ملګرو ملتو سازمان د خاصو ایجنسیو او همدارنګه د خپلی خوښي [رضاکارنه] بودجه هم لري. په دې وروستیو کلونو کې د ملګرو ملتو بودجه ۲۰ بلیونو ډالرو ته رسېږي.

د خپلو عادي او هم د سوله ساتنې عملیاتو لپاره د ملګرو ملتو سازمان تقریباً په کلي توګه د غړو هیوادو پر حق العضویت تکیه لري. د ملګرو ملتو د منشور په امضا کولو او د ملګرو ملتو په سازمان کې د غړیتوب په لاسته راوړلو سره، غړي هیوادونه قانوني تعهدکوي چې حق العضویت تادیه کړي. که د کوم غړي هیواد حق العضویت تر یوه کال زیات وځنډېږي نو ښایي په عمومي اسامبله کې یې د رایې ورکولو حق تعلیق سي. د حق العضویت مقدار، د غړو هیوادو د ملي شتمنۍ پر اساس، د یوه پرله پیچلي فورمول له مخې د عمومي اسامبلې له خوا ټاکل کېږي. په نتیجه کې، نهه هیوادونه، هر یو جلا جلا، د ملګرو ملتو د بودجې ۲٪ یا زیات حق العضویت تادیه کوي. دا نهه هیوادونه او د هغوی برخه د ملګرو ملتو په عادي بودجه کې په لاندې ډول دي: د امریکې متحده ایالات (۲۲٪)، جاپان (۱۹,۵٪)، جرمني (۸,۷٪)، برتانیه (۶,۱٪)، فرانسه (۶٪)، ایټالیه (۴,۹٪)، کاناډا (۲,۸٪)، هسپانیه (۲,۵٪) او چین (۲,۱٪). له بلي

خوا، اته څلوېښت هیوادونه حداقل حق العضویت (۰,۰۰۱٪) ورکوي. د ملګرو ملتو د خاصو ایجنسي ګانو د حق العضویت اندازه هم د عادي بودجې په شان ټاکل کېږي. د خاصو مسؤلیتونو (او همدارنګه د ویټو د حق په شان خاصو امتیازاتو) له امله، د سوله ساتني د عملیاتو په بودجه کی د امنیت شورا د غړو هیوادو ونډه زیاته ده (د امریکې د متحده ایالاتو ونډه ٪۲۵ ده).

څرنګه چې ځیني هیوادونه خپل حق العضویت نه تادیه کوي، یا یې پر خپل وخت نه تادیه کوي، په ۲۰۰۶ کال کي غړي هیوادونه د عادي او سوله ساتني د بودجې په برخه کي ۳,۳ بلیونه ډالره پوروړي ول. په نتیجه کي د ملګرو ملتو مالي حالت هر وخت، په تېره بیا هغه وخت چې بشري او اجتماعي خدماتو ته یې ډېره اړتیا وي، بې ثباته او نامطمئنه وي.

## د ملګرو ملتو او نورو بین الدولتي سازمانو فعالیتونه:

د هر بین الدولتي سازمان مهم اړخونه دا دي چې کوم کارونه کوي، څومره زموږ د توقعاتو سره مطابقت کوي، او چاري په څومره ښه والي سر ته رسوي. په لاندي پاڼو کي به موږ د بین الدولتي سازمانو، په تیره بیا د ملګرو ملتو، فعالیتونه تر څیړني لاندي ونیسو.

## د سولي او امنیت د پر مخ بېولو فعالیتونه:

د ملګرو ملتو منشور په لومړي سر کي حکم کوي چې د ملګرو ملتو سازمان به "راتلونکو نسلونو ته د جګړې له مصیبت څخه، چې بشریت ته یې ډېر غمونه ورپه برخه کړل، نجات ورکوي". ملګري ملتونه هڅه کوي پر څو لارو دا هدف سر ته ورسوي.

## د تشدد violence په مقابل کې د معیارونو منځته راوړل

هغه هیوادونه چې د ملګرو ملتو منشور امضا کوي، دا پرنسیپ مني چې "بې له مشترکو منافعو څخه [یعني بېله هغو حالاتو څخه چې مشترک منافع یې ایجابوي] باید د نظامي قوې څخه کار وانه خلي" دوی همدارنګه موافقه کوي چې "پخپلو بین المللي روابطو کې به د قوې د تهدید یا استعمال څخه ډډه کوي". د منشور د دې مفکورې په تأیید، ملګرو ملتو (او هم نورو بین الدولتي سازمانو) په ۱۹۹۰ کال کې د عراق له خوا د کویټ یرغل، د ګاونډیانو پر ضد د سربیانو تعرض، او نور ورته اعمال وغندل. که څه هم چې دې ډول غندنو د تشدد مخه ونه سوای نیولای، مګر بیا هم د مسؤلیت بار پر هغو هیوادو ولوېدی چې لومړی یې عمل وکړ. کله چې، د مثال په توګه، په ۱۹۸۹ کال کې د امریکې متحده ایالاتو په پاناما کې د جنرال مانویل نوری ایګا Manuel Noriega رژیم له پښو وغورځاوه، ملګرو ملتو او همدارنګه د امریکایي دولتو سازمان Organization American of States د واشنګټن دا عمل وغانده. پنځه کاله وروسته، کله چې د امریکې متحده ایالاتو د هایتي Haiti رژیم راوغورځاوه، واشنګټن ډېره هڅه وکړه چې د ملګرو ملتو ملاتړ تر لاسه کړي. ښکاره خبره ده، لکه چې په ۲۰۰۳ کال کې د امریکې له خوا د عراق یرغل وښوول چې د معیارونو منځته راوړل د هیوادو د تعرض مخنیوی نه سي کولای. سربیره پر دې هم، دا چې د امریکې او برتانیې ډیپلوماټانو د عراق په هکله د ملګرو ملتو د تصویب د په لاس راوړلو لپاره هڅې کولې، دا خبره تاییدوي چې یو معیار وجود لري.

### ډیپلوماټیکي مداخله:

د بین الدولتي سازمانو بل رول دا دئ چې هیوادونه دې ته تشویق

کړي چې خپلې شخړې د سوله ییزې لارې حل کړي. بین الدولتي سازمانونه د متضادو اړخونو لپاره د خبرو اترو بېطرفانه زمینه برابروي، د مخالفو اړخونو تر مینځ روغه جوړه کوي، او حتی د عدالت د بین المللي محکمې International Court of Justice په شان محاکمو کې د متخاصمو ډلو تر مینځ تصمیم نیسي.

## د وسلو کنټرول:

د وسلو کنټرول او بې وسلې کولو د پروګرام پر مخ بېول د بین الدولتي سازمان یوه بله وظیفه ګڼل کېږي. د اټومي انرژۍ بین المللي ایجنسي the International Atomic Agency د زروي وسلو د انتشار د مخنیولو لپاره یوه خاصه ایجنسي ده.

## تعزیرات:

تعزیرات یوه بله قوي وسیله ده، چې پر هغو هیوادو وضع کېږي چې پر خپلو ګاونډیانو حمله وکړي او یا له بین المللي قوانینو څخه سرغړونه وکړي. تعزیرات جنجالي شیان دي او زیات وخت کار نه ورکوي، مګر ځیني وختونه مؤثر واقع کېږي او د بین المللي ټولني د نظریاتو د مهم سمبول په توګه وظیفه اجرا کوي.

## سوله ساتنه:

سوله ساتنه peace keeping د ملګرو ملتو او ځینو نورو بین الدولتي سازمانو ډېره پېژندل سوې دنده ده. د سوله ساتني په هکله به په بل فصل کې وړغېږو، خو دلته د ځینو ابتدایي حقایقو بیانول مناسب ښکاري. په ۲۰۰۸ کال کې ملګرو ملتونو د سوله ساتني ۶۳ عملیات سر ته

رسولي دي، چې په هغو کې يې د اکثرو غړو هيوادو د نظامی او پوليسي پرسونل څخه کار اخيستی دئ. د دې عملياتو څخه ځيني يې د سپکو وسله والو مبصرينو عمليات، او ځيني يې بيا وسله وال نظامي عمليات په بر کي نيسي. بين المللي قواوي هيڅکله هم دومره فعالي نه وې. تر ساړه جنګ راوروسته د ملګرو ملتو د سوله ساتني عمليات ډېر زيات سوي دي. د ۲۰۰۸ کال د ډسمبر په مياشت کي، د نړۍ په بېلابېلو برخو کي، د ملګرو ملتو ۱۶ سوله ساتونکي قواوي موجودي وې چې د ۱۱۹ هيوادو ۸۹۰۰۰ عسکرو برخه پکښي درلوده. له ښه مرغه، د ملګرو ملتو سوله ساتونکي قواوو په نسبي توګه لږ تلفات ليدلي دي، خو بيا هم ۲۵۰۰ کسه د نړيوالو په خدمت کي مړه سوي دي.

## اجتماعي، اقتصادي، محيطي او نور فعاليتونه:

د سولي د ساتلو او اعاده کولو پر فعاليتونو سربيره، بين الدولتي سازمانونه په يو لړ نورو فعاليتونو کي هم برخه لري. په لومړيو کلونو کي، د ملګرو ملتو زيات تأکيد پر امنيت باندي وو، چې تر اوسه هم دوام لري. اوس ځيني اجتماعي، اقتصادي، محيطي او نور غير نظامي امنيتي موضوعات پر زيات سوي دي. د۱۹۶۰ کال راهيسي د لږ پرمختللو هيوادو محيط او همدرانګه بشري او سياسي حقوقو ته توجه زياته کړې ده. د ملګرو ملتو پخواني سرمنشي کوفي عنان وايي: "سوله ساتونکي عمليات ډېره زياته توجه جلبوي، مګر د ملګرو ملتو د بودجې او پرسونل ډېره غټه برخه و داسي کار ته وقف ده چې لږ پام ورته کېږي ... د کارونو په منځ ته راوړلو او د ژوند د سطحي په لوړولو کي د هيوادو سره مرسته؛ د لوږي، جنګ، او طبيعي آفاتو قربانيانو ته مرستي رسول؛ د مهاجرينو سره مرستي؛ د سواد پر مخ بېول؛ او د امراضو پر ضد مبارزه د دې ډول عملياتو

یو څو نمونې دي".

دا به ناممکنه وي چې د ټولو هغو وظایفو لیست چې ملګري ملتونه او نور بین الدولتي سازمانونه یې سرته رسوي دلته تشریح سي. دومره ویلای سو، چې دا وظایف د هغو موضوعاتو ډېره برخه په بر کي نیسي چې انسانان د حکومت په سطحه کي ورسره مخامخ کېږي. په راتلونکي فصلونو کي به پر دې کارونو رڼا واچول سي، خو دلته به هم یو څو پروګرامونه او د ملګرو ملتو او نورو بین الدولتي سازمانو بریالیتوبونه بیان سي.

د اقتصادي پرمختګ تشویق یو مهم رول دئ چې ملګري ملتونه یې د ملګرو ملتو پرمختیایي پروګرام United Nations Development Program (UNDP)، جهاني بانک، او یو زیات شمېر نورو نړیوالو او سیمه ییزو بین الدولتي سازمانونو سره یو ځای د لږ پرمختللو هیوادو د اقتصادي پرمختګ لپاره سر ته رسوي. یوازي د ملګرو ملتو پرمختیایي پروګرام (UNDP) یو بلیون ډالره کالنۍ بودجه لري.

د بشري حقوقو دفاع د بین الدولتي سازمان د رول سره نژدې ارتباط لري. په ۱۹۴۸ کال کي د بشري حقوقو د جهاني اعلامیې Universal Declaration of Human Rights سره سم، ملګرو ملتونو په فعاله توګه د سیاسي، مدني، اقتصادي، اجتماعي، او کلتوري حقوقو د دفاع موافقت نامې منځته راوړې او مخ په وړاندي یې بېولي دي. د ملګرو ملتو د بشري حقوقو کمیسیون The UN Commission on Human Rights د خپل تحقیقاتي قدرت څخه په کار اخیستلو سره د بشري حقوقو سرغړوني افشا کړي او پر سر غړوونکو باندي یې فشارونه وارد کړي دي. د کار بین المللي سازمان International Labour Organization (ILO) د تقریباً ۲۵۰ ملیونو هغو کوچنیانو د خلاصون لپاره هلي ځلي کوي چې په ښوونځي کي د درس ویلو پر ځای کار کولو ته مجبور کړه سوي دي او هم

چي د کوچنيانو سره جنسي وحشت ته، چي د نړۍ په ځينو برخو کي لوی بيزنيس ګرځېدلی دئ، خاتمه ورکړي.

د بشري هستۍ د کيفيت لوړول هم د ملګرو ملتو او بين الدولتي سازمانو مهم رول دئ چي ډېر اړخونه لري. د مهاجرو [ريفيوجي] لپاره د ملګرو ملتو عالي کميشنر له لاري د جګړې، کاختۍ او نورو خطرونو له امله تر ۳۰ مليونو زياتو مهاجرو سره مرسته سوې ده. بېلابېلو بين الدولتي سازمانو خپله انرژي روغتيا، تغذيې او سواد ته وقف کړې ده. د مثال په توګه، د غذا او کرهڼي سازمان The Food and Agriculture Organization داسي يو پروګرام رامنځته کړی دئ چي د هغه له مخي د نوي جنيتيکي تخنيکونو له لاري قوي اهلي حيوانات منځته راوړل کېږي چي په خاصه توګه به د لږ پرمخ تللو هيوادونو لپاره ګټور وي.

## منطقوي بين الدولتي سازمانونه

### اروپايي اتحاديه

### European Union

تر دوهمي عمومي جګړې مخکي کوم مهم منطقوي بين الدولتي سازمان وجود نه درلود. اوس منطقوي بين الدولتي سازمانونه دومره زيات دي چي د ټولو بين الدولتي سازمانو په سلو کي ۷۰ تشکيلوي. ډېر زيات يې، لکه د عربو د همکارۍ شورا Arab Cooperation Council، اختصاصي شکل لري چي د منطقوي بين الدولتي سازمانو زياته برخه په بر کي نيسي. نور منطقوي بين الدولتي سازمانونه بيا عام شکل لري چي د ډېرو مسايلو سره سروکار لري. افريقايي اتحاديه African Union (AU) او د امريکايي دولتونوسازمان Organization of American States (OAS) يې مثالونه دي.

يوه بله مهمه خبره د منطقوي بين الدولتي سازمانو په هکله دا ده چي

ځینو یې د اختصاصي شکل څخه و عام شکل ته انتقال موندلی دئ. په ۱۹۶۷ کال کي د جنوب ختیځي آسیا د ملتونو انجمن The Association of Southeast Asian Nations (ASEAN) د منطقوي اقتصادي همکارۍ د پراختیا په منظور منځته راغی. مګر په دې وروستیو کلونو کي دې انجمن زیات سیاسي رنګ اخیستی دئ، چي په خاصه توګه، ښايي په منطقه کي د چین په مقابل کي د توازن ساتلو یوه وسیله وګرځي. د لوېدیځي افریقا د دولتونو اقتصادي ټولنه The Economic Community of West African States (ECOWAS) هم په دې اوس کلونو کي خپل رول پسي پراخ کړی دئ. دا سازمان چي په ۱۹۷۵ کال کي د اقتصادي راکړي ورکړي په برخه کي د اسانتیاوو د منځته راوړلو په هدف جوړ سو، اوس یې د یوه پارلمان او د بشري حقوقو د محکمې شکل اخیستی دئ. د لوېدیځي افریقا د دولتونو اقتصادي ټولني همدارنګه د منطقوي امنیت مسؤلیتونه هم پر غاړه اخیستي دي او د عاج ساحل Ivory Coast، لایبیریا Liberia، اوسیریا لیون Sierra Leone په داخلي جنګونو کي یې مداخلې کړي دي. د منطقوي بین الدولتي سازمانو تر ټولو ډېر مهم مثال اروپايي اتحادیه ده چي ۲۷ هیوادونه یې غړیتوب لري. دې اتحادیې پر پوره اقتصادي اتحاد سربیره، تر زیاتي اندازې سیاسي همکاري هم لاسته راوستلې ده.

## د اروپايي اتحادیې ریښې او تکامل:

د اروپايي اتحادیې پیدایښت له هغه وخته راپیلېږي چي په ۱۹۵۲ کال کي بلجیم، فرانسې، ایټالیې، (غربي) جرمني، لکسمبورګ، او هالنډ د ډبرو د سکرو، اوسپني او فولادو د تولیداتو یو مشترک بازار د اروپا د ډبرو د سکرو او فولادو د کمیونیټۍ European Coal and Steel

Community (ECSC) په نوم منځته راووړ. د کمیونیټۍ بریالیتوبونو شپږ هیوادونه دې ته وهڅول چي و نورو برخو ته هم د تجارتي اسانتیاوو د برابرولو لپاره د اروپا اقتصادي کمیونیټي European Economic Community (EEC) تأسیس کړي.

د لا زیاتو او دوامدارو اقتصادي بریالیتوبونو له امله دې شپږو هیوادونو، په ۱۹۶۷ کال کي، د اروپایي کمیونیټۍ European Communities (EC) یو پرمختللی سازمان تأسیس کړ. وروسته په ۱۹۹۳ کال کي، د اروپایي اتحادیې European Union (EU) نوم ورته غوره سو، څو دا نوم وکولای سي پر موجوده پرمختللي اتحاد سربېره د یو واحد اقتصادي یونیټ په توګه د اروپایي اتحادیې د منځته راتلو له هدف سره تطابق وکړي.

تر ټولو مهمه پېښه په ۲۰۰۲ کال کي د اروپایي اتحادیې د زیاتو هیوادو له خوا د یوې واحدي سیکې، یورو، منځته راوړل دي. څرنګه چي د اروپایي اتحادیې د غړو هیوادو تر منځ مالي راکړه ورکړه په ډېره چټکي سره مخ پر زیاتېدو وه، نو د اسعارو تبادلې چندان مفهوم نه درلودی. ځکه نو د ۱۹۹۰ کال په لومړیو کلونو کي، اروپایي اتحادیې د یوې مشترکي سیکې [پیسې] currency د منځته راوړلو سره موافقه وکړه. کله چي نوې سیکه د په کار اچولو لپاره آماده سوه، یوازي هغو هیوادونو چي ښه مالي کنټرول او منیجمنټ (لکه محدود پولي بحران او د بودجې کسر) یې درلود، یورو د خپلي نوي سیکې په توګه په کار اچولای سوای. په ۲۰۰۲ کال کي، په هغو هیوادو کي چي یورو یې د خپلي سیکې په توګه منلې وه، دوران ته ولوېدله او د هغوی عنعنوي سیکه د قانوني سیکې په توګه له منځه ولاړه. په ۲۰۰۸ کال کي، د اروپایي اتحادیي ۱۵ هیوادو د یورو څخه کار اخیستی، او یو لړ شمېر هیوادونو چي د اروپایي اتحادیې غړي نه وه،

لکه موناکو، هم یورو د خپلي سیکې په توګه ومنله. د اروپایي اتحادیې ځیني پخواني غړي هیوادونه، لکه برتانیه، ډنمارک او سویډن، تر اوسه هم د خپلو خاصو دلایلو له امله له یورو څخه کار نه اخلي.

د یورو منځته راوړل هم د اقتصادي پلوه او هم د سیاسي لحاظه مهم ګام وو. په اقتصادي لحاظ، یورو د اروپایي اتحادیې غړي هیوادونه نور هم سره نژدې کړل. ملي سیکه، چي د یو مستقل اقتصاد نښانه ده، له منځه ولاړه. د یوې مشترکي سیکې پر اقتصادي اهمیت سربیره، د جرمني د مارک، د فرانسې د فرانک، او د ایټالیې د لیرې تعویض په یورو باندي ډېر مهم سیاسي سیمبولیزم هم ښیي.

لس نوي هیوداونه په ۲۰۰۴ کال کي د اروپایي اتحادیې غړي سول او دوه نور په ۲۰۰۷ کال کي پر زیات سول. اوس د اروپایي اتحادیې غړي ۲۷ ته رسېږي. درو نورو هیوادو هم د غړیتوب درخواستي ورکړې ده. د اروپایي اتحادیې هدف دا دئ چي بالاخره د سیمي ټول هیوادونه په ځان راکښیباسي. تقریباً دېرش کاله کېږي چي اروپایي اتحاد و اقتصاد ته متوجه دئ. د کلونو په تېرېدلو سره، د اروپایي کمیونیټې European Community (EC) غړي هیوادونه د اقتصادي یووالي پر خوا په حرکت کي ول. ګمرکي تعرفې پر هغو مالونو چي په غړو هیوادو کي تولیدېدل ټول له منځه یووړل سوې، د خارجي هیوادو په مقابل کي مشترکه خارجي تعرفه منځته راغله، او د نورو هیوادو سره تجارتي مذاکرات د اروپایي کمیونیټې له لاري سر ته رسېږي.

داسي وخت رارسېږي چي نور نو اقتصادي یووالی integration بې له سیاسي یووالي دوام نه سي موندلای. علت یې دا دئ چي د مستقلو دولتونو تر مینځ اقتصادي یووالی، چي داخلي او خارجي سیاسي پالیسي ګاني یې ځیني وختونه سره په تضاد کي وي، ممکن نه دئ. پر دې سربېره،

کله چي خلګ په اقتصادي لحاظ سره متحد سي، نو بیا د سیاسي وحدت فکر هم ور ته پیدا کیږي.

دا وخت په ۱۹۹۰ کلونو کي راورسېدی او د اروپايي کمیونیټي غړي هیوادونه په ۱۹۹۳ کال کي د اروپايي اتحاديې پر معاهده موافقې ته سره ورسېدل. دې معاهدې، چي د ماستریخت د معاهدې Maastricht Treaty په نامه هم یادېږي، د اروپايي اتحاديې د سیاسي بشپړتوب تهداب کښېښود. په دې لار کي د لومړي ګام په توګه، اروپايي تابعیت پراختیا ومونده. اوس خلګ کولای سي د اروپايي اتحاديې او هم پخپل ملي پاسپورټ سفر وکړي. د اروپايي اتحاديې د هر هیواد تبعه که د اروپايي اتحاديې په کوم بل هیواد کي اوسېږي، کولای سي چي اروپايي پارلمان ته رایه ورکړي او یا هم کولای سي د هغه هیواد په محلي انتخاباتو کي رایه ورکړي کوم چي پکښي اوسېږي.

اروپايي اتحاديې همدارنګه د دولت سمبولونه هم ټاکلي دي. ځانته بیرغ لري او اروپايي سرود European Anthem [د ملي سرود په شان] یې هم ځانته غوره کړی دئ. د اروپايي هیوادو د ژبني تنوع له امله، په اروپايي سرود کي الفاظ نه دي کارول سوي. اروپايي اتحاديې د نوي اروپايي اساسي قانون د منځته راوړلو له پاره هم رایه ورکړې ده.

## د اروپايي اتحاديې اداري طرز:

د اروپايي اتحاديې سازماني جوړښت پرله پیچلی دئ، مګر موږ به یې په یوه لنډه کتنه کي د حکومتي سازمان سره په مقایسه کي تشریح کړو. د یو بین الدولتي سازمان په توګه، د اروپايي اتحاديې اداري طرز او جوړښت د یوه حکومت په شان نه دئ، مګر ویلای سو، چي پر همدې خوا ور روان دئ او د حکومت ځیني سازماني مشخصات په ځان کي لري. د

تحلیل او څېړني لپاره موږ کولای سو اروپايي اتحاديې اداره پر سیاسي رهبري، بيوروکراسي، نظارت، قانون ګذاري او قضايي برخو ووېشو.

## سیاسي رهبري:

سیاسي تصمیم نیول د اروپايي اتحاديې په شورا Council of the European Union کي، چي پخوا د وزیرانو شورا بلل کېدله، متمرکز دئ. د دې شورا په غونډو کي د غړو هیوادو وزیران (لکه د مالیې وزیران) برخه اخلي. د اروپايي اتحاديې شورا پخپل واک، او یا هم د اروپايي پارلمان سره په ګډه، د اروپايي اتحاديې د مهمو پالیسیو په هکله تصمیم نیسي. د شورا عمومي منشي په بین المللي چارو کي د شورا په نماینده ګي خبري کوي او همدارنګه نوري مهمي چاري سر ته رسوي. اروپايي شورا د غړو هیوادو د صدراعظمانو او نورو دولتي مشرانو په ګډون په کال کي دوه ځلي غونډې کوي.

د شورا اکثره غونډې د بلجیم په پایتخت بروکسل کي، چي د اروپايي اتحاديې عمده اداري ارکان پکښي میشت دي، جوړېږي. د تصمیم نیولو لپاره د رايي ورکولو درې ډوله پلانونه وجود لري. د ورځني چارو په هکله تصمیم نیول د رایو په اکثریت سره سر ته رسېږي. بل د صلاحیت لرونکي اکثریت پلان دئ چي د اکثرو تصامیمو لپاره کار ځنی اخیستل کېږي. د دې پلان له مخي، ۳۴۵ رايي وجود لري. څلور هیوادونه (فرانسه، جرمني، برتانیه، او ایټالیه) هر یو ۲۹ رايي لري. د نورو ۲۳ غړو هیوادو د رایو شمېر یو له بله توپیر لري؛ د مثال په توګه، اسپانیا او پولنډ ۲۷ رايي او مالټا بیا ۳ رايي لري. د رايي ورکولو پروسه پرله پیچلې ده، مګر د صلاحیت لرونکي اکثریت معني دا ده چي درې معیارونه پوره کړي: (الف) اکثریت (۱۴) هیوادونه، (ب) ۲۵۵ یا تر هغه زیاتي رايي، (ج) د هغو هیوادو رايي چي د اروپايي اتحاديې د نفوس د لږ تر لږه په سلو

کي ۶۲ نمایندګي وکړي. دریم د اتفاق آراء پلان دئ چي د مالیاتي، دفاعي، او خارجي چارو په هکله د تصمیم نیولو پر وخت کار ځني اخیستل کېږي. د دې ډول رایي ګیرۍ د سیسټم ګټه دا ده چي د پالیسیو په هکله د اروپایي اتحادیې د غړو زیات توافق پکښي موجود وي او د یوه یا څو هیوادو مخالفت د پالیسیو مخه نه سي نیولای.

## اداري چاري:

د اروپایي اتحادیې اداره bureaucracy د اروپایي کمیسیون European Commission تر واک لاندي سازمان سوې ده، چي د شورا او پارلمان له خوا وضع سوې پالیسۍ عملي کوي، او هم شورا او پارلمان ته د قوانینو وړاندیز کوي. اروپایي کمیسیون ۲۷ کمیشنران لري چي د هر غړي هیواد څخه یو کمیشنر ورته ټاکل سوی وي. د دوی د خدمت دوره پنځه کاله ده او د اروپایي اتحادیې د کابینې په توګه عمل کوي. یو له کمیشنرانو څخه د اروپایي اتحادیې د شورا له خوا د کمیسیون د رئیس په توګه ټاکل کېږي. دا عالیرتبه مامور د اروپایي اتحادیې د اداري مشر په توګه د اروپایي اتحادیې د اداري چارو مسؤلیت پر غاړه لري. د اروپایي اتحادیې اداري مرکزي دفتر په بروکسل کي دئ. د پاته ۲۶ کمیشنرانو څخه هر یو یې د یوه وزارت نظارت او سرپرستي پر غاړه لري.

د اروپایي اتحادیې اداري کارمندان نن ورځ ۲۵۰۰۰ تنو ته رسېږي چي د۱۹۷۰ کال راهیسي څلور چنده سوي دي. د اروپایي اتحادیې د ۲۰۰۷ کال بودجه ۱۲۶,۵ بلیونه یورو وه، د ۲۰۰۹ کال پیشنهادي بودجه یې ۱۳۴,۴ بلیونه یورو ټاکل سوې ده. د دې بودجې په سلو کي ۷۰ د غړو هیوادو له خوا ورته ورکول کېږي، او په سلو کي ۳۰ پاته برخه یې د اروپایي اتحادیې د ګمرکي عوایدو او [د اروپایي اتحادیې] یو خاص ډول مالیاتو څخه تمویلېږي.

## د نظارت سازمانونه:

اروپايي اتحاديه د نظارت او مراقبت دوه ساختارونه structures لري. يو يې اروپايي شکايت اورېدونکی European Ombudsman دئ چي د اروپايي پارلمان له خوا ټاکل کېږي. د اروپايي اتحاديې هغه اوسېدونکي او سازمانونه چي فکر کوي د اروپايي اتحاديې د چارواکو له خوا غيرعادلانه چلند ورسره سوی دئ، د شکايت اورېدونکي له دفتر څخه د تحقيقاتو غوښتنه کولای سي. که د شکايت اورېدونکي دفتر په دې باور سي چي بې عدالتي سر ته رسيدلې ده، نو کولای سي د اروپايي اتحاديې اړوندو ايجنسيو ته د حقوقي جبران سپارښتنه وکړي.

د نظارت بله مؤسسه د پلټني او څارني محکمه Court of Auditor ده چي د اروپايي اتحاديې هر غړی هيواد يو نماينده پکښې لري. دا محکمه د اروپايي اتحاديې د بودجې او په قانوني او سالمه توګه د هغه د مصرف او مديريت management څارنه کوي. دا محکمه مستقل اصلاحي واک نه لري، مګر کولای سي شورا او پارلمان ته سپارښتونه وړاندي کړي.

## مقننه قوه:

اروپايي پارلمان European Parliament (EP) د اروپايي اتحاديې د مقننه قوې په توګه عمل کوي چي د فرانسې په سټراسبرګ کي سره راغونډېږي. دا پارلمان ۷۸۵ غړي لري چي د اروپايي اتحاديې د ۲۷ غړو هيوادو له خوا د نفوس د تناسب پر اساس د پنځو کلونو لپاره انتخابېږي. د جرمني هيواد چي تر ټولو يې نفوس ډېر دئ، ۹۹ چوکۍ لري، او د مالټا هيواد چي تر ټولو يې نفوس لږ دئ، ۵ چوکۍ لري. ډېر وخت د بين الدولتي سازمانو د اسامبلې غړي د حکومتونو له خوا ټاکل کېږي، مګر د اروپايي

پارلمان غړي د هر هیواد د خلګو له خوا د رایي ورکولو له لاري انتخابیږي.

## قضائیه قوه:

د عدالت محکمه The Court of Justice د اروپایي اتحادیې عمده قضائیه څانګه تشکیلوي. دا محکمه چي د ۲۷ قاضیانو- د هر غړی هیواد څخه یو قاضي – څخه جوړه ده په لکسمبورګ کي غونډې کوي. د غړو دولتو او یا د اروپایي اتحادیې د نورو مؤسساتو دعوې تر غور لاندي نیسي. ډېر لږ پیښیږي چي د محکمې ټول قاضیان پر یوه دعوه باندي سره غونډ سي. تقریباً په سلو کي ۹۰ دعوې د ۳ یا ۵ قاضیانو په جرګه کي تر غور لاندي نیول کیږي. په دې کار سره محکمه کولای سي ډېري دعوې ګاني (۴۰۰ څخه تر ۵۰۰ پوري) تر غور لاندي ونیسي.

د اروپایي اتحادیې د معاهداتو مجموعه، د رسمي اساسي قانون پر ځای، د اروپایي اتحادیې د اساسي قانون په توګه پیژندل سوې ده. محکمه کولای سي د اروپایي اتحادیې او د غړو هیوادو هغه قوانین او مقررات چي د اروپایي اتحادیې د اساسی معاهداتو سره په ټکر کي وي، لغوه کړي. د مثال په توګه، په ۲۰۰۶ کال کي محکمې د اروپایي اتحادیې او د امریکې د متحده ایالاتو تر مینځ هغه قرارداد چي د ۲۰۰۱ کال د سپټمبر تر یوولسمي وروسته امضاء سوی وو، لغوه کړ. د هغه قرارداد له مخي اروپایي اتحادیې باید د امریکې متحده ایالاتو مامورینو ته د هغو هوایي مسافرینو شخصی معلومات ورکړي وای چي د اروپایي اتحادیې د هوایي ډګرونو څخه د امریکې پر لوری خوځیدل.

# اتم فصل

## بين المللي قانون اوبشري حقوق

## International Law and Human Rights

په دې فصل کې په نړيوال سياست کې د بين المللي قانون او عدالت په هکله بحث کېږي. همدارنګه بشري حقوق او له بين المللي حقوقي سيستم سره د هغوی روابط تر څېړنې لاندې نيول کېږي. دا به ساده ګې وي که موږ پر دې حقيقت سترګې پټې کړو چې په نړيوال سياست کې ډېر وخت پر شخصي ګټو ټينګار کېږي. مګر دا خبره په داخلي سيستمونو کې [يعنی د يو مملکت په داخل کې] هم صدق کوي. د نړيوال او داخلي سيستمونو تر منځ توپير په دې کې دئ چې په داخلي سيستمونو کې پر هغو کسانو چې په شخصي ګټو پسې ګرزي زيات [قانوني] ممانعتونه وضع سوي وي.

حقوقي سيستم د يوه هيواد په دننه کې د شخصي ګټو په مقابل کې يو ممانعت دئ. ښکاره خبره ده چې په هر داخلي سيستم کې زورور افراد او ګروپونه امتيازات لري. له قوانينو څخه سرغړوني کېږي او متهم کسان، په تېره بيا هغه کسان چې د يوه چالاکه مدافع وکيل attorney د استخداملو توان ورسره وي، ځيني وختونه کولای سي د قانون له منګولو وتښتي. مګر بيا هم د امريکې په متحده ايالاتو کې، د اساسي قانون د څورلسمي ضميمې پر اساس، د خلګو په وړاندي ښکاره تبعيض نه سي

کېدای. د مثال په توګه، غریب متهم ته د محکمې له خوا مدافع وکیل په وړیا توګه ټاکل کېږي.

که په داخلي سیسټم [یعني د یوه هیواد په دننه] کې داسي حقوقی او قضایي سیسټم منځته راتلاي سي چي د قدرت سیاست power politics په کنټرولېدای سي، نو په تیوریکي لحاظ دا هم ممکنه ده چي په بین المللي سیسټم کي هم د شخصي ګټو د مخنیوي له پاره حقوقي سیسټمونه منځته راوړل سي.

## د بین المللي قانون او عدالت اساسات

## Fundamentals of International Law and Justice

ټول حقوقي سیسټمونو، داخلي دي که بین المللي، د یوه ابتدایي حالت څخه ئې و موډرن او پرپیچلي حالت ته تکامل کړی دئ. ځکه نو هر حقوقي سیسټم په یو تکاملي سیر کي، د ابتدایي څخه بیا تر موډرن پوري، مطالعه کولای سو. دې ته باید پام وسي چي موډرن [عصري] د تکمیل معنی نه لري؛ راتلونکو نسلونو ته ښایي زموږ اوسنی حقوقي سیسټم بدوي ښکاره سي. د ابتدایي مګر تکاملي حقوقي سیسټم مفهوم مهم دئ ځکه چي زموږ سره د بین المللي قانون په پوهه کي مرسته کولای سي.

اوسنی بین المللي حقوقي سیسټم د تکامل په ابتدایي مرحله کي قرار لري. لومړی دا چي، اوسنی بین المللي حقوقي سیسټم، د نورو پر مختللو سیسټمو په مقایسه، د قانون جوړولو (مقننه) یوه رسمي پروسه نه لري. د سیاسي لوبغاړو [اکټرانو] سلوک او رفتار پر بین المللي عنعناتو او یا هم د دوی تر منځ پر توافقاتو ولاړ وي. دوهم، له قانون څخه د سرغړوني په صورت کي د قضاوت او یا مجازات له پاره ډېر لږ او یا هیڅ مستقر

واکمن مقام وجود نه لري. بدوي ټولني، داخلي دي که بین المللي، پولیس او محکمې نه لري. دوی د شخړو او مناقشاتو د حل له پاره کله د خبرو اترو، کله بیا د تشدد او ځینی وخت د میانځګړتوب څخه کار اخلي. مګر بیا هم، بین المللي قانون که څه هم په ابتدایي حالت کي دئ، په واقعیت کي وجود لري. همدارنګه، بین المللي ټولنه او قوانین ئې هم بڼایي په راتلونکي کي و یوې لوړي مرحلې ته تکامل وکړي.

## د بین المللي قانون انکشاف:

د بین المللي قانون سرچینه له هغه وخته راپیل سوې ده چي دولتونو د خپلو چارو د تنظیم له پاره اړتیا پیدا کړه. د بین المللي قانون په منځته راتلو کي یو شمېر تیوریسنانو مهم رول لوبولی دئ. تر ټولومشهور یي د هالنډ هوګو ګروتیوس Hugo Grotius (۱۵۸۳ ـ ۱۶۴۵ع) دئ چي د جنګ او سولي د قانون په باب(On the Law of War and Peace) اثر ئې ولیکی او د بین المللي قانون لومړنی محقق بلل کېږي. ګروتیوس او نورو پوهانو د بین المللي قانون او د دولتونو تر منځ په روابطوکي د هغه د رول په هکله نظریات پسي پراخ کړل. د بین المللي ټولني د اړتیاوو او توقعاتو د پرله پېچلي کېدو او د دولتونو تر منځ د فعل او انفعال په زیاتېدو سره بین المللي قانون هم په تدریجي توګه تکامل وموند.

## بین المللي قانون په عمل کي:

هغه کسان چي له بین المللي قانون څخه ناراضه دي دا خبره کوي چي بین المللي قانون یوازي په تیوري کي وجود لري نه په عمل کي. د خپلي ادعا د ثبوت له پاره دوی جنګونه، د بشري حقوقو څخه سرغړوني او

بې قانونۍ او نورو مثالونو ته اشاره کوي. مګر د دوی په استدلال کې دا خبره ورکه ده چې بین المللي قانون، سره له دې چې ځیني خلاوي لري، بیا هم په ډېرو ساحو کې مؤثر موجودیت لري. داسي ډېر شواهد سته چې دولتونه «بین المللي قانون ته د قانون په سترګه ګوري. تر ټولو مهمه دا ده چې په اکثریت حالاتو کې دولتونه بین المللي قانون ته غاړه ایږدي». پر دې سربېره، که یو قانون هر وخت نه مراعاتېږي معنی ئې دا نه ده چې وجود هم نه لري. د مثال په توګه، د امریکې په متحده ایالاتو او هم په ډېرو نورو هیوادو کې ډېر زیات جرایم وجود لري، مګر د دې معنی دا نه ده چې دا هیوادونه ګواکې یاغي او بې قانونه دي.

## بین المللي قانون او سیاست:

بین المللي قانون په کښته سیاست low politics کې ډېر مؤثریت لري. کښته سیاست یوه اصطلاح ده چې د تجارت، ډیپلوماټیک مناسباتو او مذاکراتو له پاره استعمالېږي. بین المللي قانون د ملي امنیت په شان مسایلو، یعني لوړ سیاست high-politics، کې لږ مؤثریت لري. کله چې د حیاتي منافعو خبره منځته راسي، دولتونه اوس هم بین المللي قانون د ځان په ګټه کږوي او یا بالکل سترګي پر پټوي. سربېره پر دې هم، بین المللي معیارونه د دولتونو پر ستراتیژیکو سیاسي تصامیمو اثر لري. بین المللي قانون او نړیوال ارزښتونه، د مثال په توګه، د هغو دولتو پر ضد دي چې، بې له د ځان ځخه د دفاع په صورت کې، په جګړه لاس پوري کوي. د عراق له خوا پر کویټ باندي د یرغل په شان سرغړوني او تخلفات اوس هم پېښېږي، مګر د سخت نړیوال عکس العمل سره مخامخ کېږي، او حتی پر ضد ئې د نظامي قوې ځخه هم کار اخیستل کېږی. اوس حتی د امریکې د متحده ایالاتو په شان قدرتمن هیوادونه هم په ۲۰۰۱ کال کې د افغانستان

او په ۲۰۰۳ کال کي د عراق په شان حالاتو کي د ملګروملتو د تصویب لاسته راوړلو هڅي کوي. په داسي حال کي چي ډېر لږ وخت مخکي به دوی په خپل سر هر څه چي ئې غوښتلای کړي وای. دا یو واقعیت دئ چي د امریکې متحده ایالاتو او برتانیې بالاخره، بې له د ملګروملتو له ملاتړ څخه، په کال ۲۰۰۳ پر عراق یرغل وکړ، مګر د دې معنی بیا هم دا نه ده چي د یو اړخیزه یرغل پر ضد معیارونه وجود نه لري. په بین المللي سویه د عراق د یرغل پراخ محکومیت په خپله دا ښیي چي بین المللي معیارونه وجود لري.

## بین المللي حقوقي سیسټم

### The International Legal System

بین المللي قانون، د هر بل حقوقي سیسټم په شان، پر څلورو مهمو اساساتو ولاړ دئ: د قانون فلسفي ریښې، قانون څرنګه منځته راځي، په کوم وخت کي او ولي د قانون اطاعت کېږي او د حقوقي جنجالو د حل په هکله تصمیم څرنګه نیول کېږي.

### د قانون فلسفي ریښې:

قانون له کومه ځایه راځي؟ په دې هکله درې عمده نظریات وجود لري. لومړی نظر دا دئ چي د قانون منبع تر بشري ټولني خارج د ایډیالوجي یا الهیاتو theology څخه سرچینه اخیستې ده.

د مثال په توګه، د بین المللي حقوقو د تیورۍ زیاته برخه عیسوي تعلیماتو ته رسېږي؛ سینټ اګوستین Saint Augustine او سینت توماس اکویناس Saint Thomas Aquinas چي عیسوي روحانیون دي د جنګ د قانون په هکله لیکني کړي دي. همدارنګه، په اسلامي، بودایي او

نورو ديني قوانينو او تحقيقاتو کي هم د بين المللي عدالت عناصر وجود لري.

دوهم نظر، چې د قانون طبيعي مکتب naturalist school of law ته منسوب دئ، هم د قانون پر خارجي منبع ولاړ دئ. د دې نظريي له مخې انسانان، په طبيعي توګه، ټاکلي حقوق او مکلفيتونه لري. انګرېزي فيلسوف جان لاک John Lock په خپل اثر، د حکومت دوه قراردادونه (۱۶۹۰)، کې استدلال کوي چې د (طبيعت يو قانون) وجود لري چې: "د هغه پر اساس ټول خلګ په طبيعي حالت کې مساوي او آزاد دي، هيڅ څوک بايد د بل چا ژوند، صحت، آزادۍ او ملکيت ته تاوان ونه رسوي". څرنګه چې هيوادونه د افرادو مجموعه ده، او نړيواله ټولنه بيا د دولتونو او افرادو مجموعه ده، د طبيعت د قانون حقوق او مکلفيتونه په جهاني سطحه کې په کار لوېږي او په دې توګه د بين المللي قانون اساس تشکيلوي.

دريم نظر بيا د قانون ريښې د ټولني په عُرف او رواج کې لټوي. دې ته د قانون دمثبتيت مکتب positivist school of law وايي. د دې مکتب په عقيده قانون د ټولني او د ټولني د ادارې په هکله د خلګو د غوښتنو انعکاس دئ. ځکه نو، د مثبتيت د اصولو له مخې، قانون بايد د ټولني د معيارونو د تدوين [يعني په رسمياتو او قانوني شکل د معيارونو تنظيم او تصويبول] محصول وي.

دا درې سره مکتبونه خپل ځانته مخالفين او موافقين لري. هغه کسان چې د قانون د خارجي منابعو نظريه ردوي په دې عقيده دي چې پر الهياتواو ايډيالوجي باندي ولاړ معيارونه ډيموکراټيک نه دي، ځکه چې قانون د ديني علماوو له خوا جوړېږي او تفسير ئې هم د ديني علماوو له خوا سر ته رسېږي. همدارنګه، پر ايډيالوجي باندي ولاړ قانون بيا د کمونست

ګوند د مامورینو په شان تنګ نظرو کسانو له خوا جوړېږي او تفسیرېږي. د طبیعي قانون انتقادکوونکي بیا دا تور لګوي چې د طبیعي قانون نظریه له یوې خوا مبهمه ده او له بلې خوا پر فردي حقوقو ډېر ټینګار کوي. د مثال په توګه، جان لاک په دې عقیده وو چې ملکیت د خلګوطبیعي حق دئ. که دا رشتیا وي چې د یوه شخص ملکیت د طبیعت د قانون له مخې محفوظ دئ، نو بیا که حکومت د یوه شخص ملکیت [بې له د شخص له موافقې څخه] د وضع سویو مالیاتو په عوض کې څنې واخلي، [یعني که یو څوک د دولت مالیه تادیه نه کړي او دولت ئې په عوض کې ملکیت څنې واخلي] ایا دا کار د هغه شخص پر بشري حقوقو تېری دئ؟ انتقادیون د مثبتیت نظریه غیر اخلاقي بولي او په کلکه ئې څکه ردوی چې د ټولني او یا د ټولني د حاکمه طبقې غیراخلاقي سلوک ته مشروعیت وربخښي. دا انتقادیون وایي، د مثال په توګه، غلامي یو وخت عامه او منل سوې پدیده وه، مګر هیڅکله اخلاقي یا قانوني پدیده نه وه.

## بین المللي قانون څرنګه جوړېږي؟

په یوه هیواد کې داخلي قوانین عموماً د اساسي قانون مطابق د مقننه هیئت له خوا وضع کېږي. تقنیني فرمانونه او مقررات بیا د حکومت د هغو ادارو له خوامنځته راځي چې قانوني واک ورکړه سوی وي. په اوسني عصر کې، د داخلي قانون جوړولو د پروسې په مقایسه، د بین المللي قانون جوړولو پروسه ډېر وخت مرکزیت نه لري. د عدالت د بین المللي محکمې د اساسنامې له مخې د بین المللي قانون له پاره The Statute of the International Court of Justice څیني منابع وجود لري چې عمده ئې: بین المللي معاهدات، بین المللي عُرف، او د قانون عمومي پرنسیپونه دي. د بین المللي قانون څینی پوهان بیا یوه بله منبع هم پر زیاتوي چې د

ملګرو ملتونو د عمومي اسامبلې تصويبونه او اعلاميې دي.

## د قانون منابع:

بين المللي معاهدات د بين المللي قانون تر ټولو مهمه منبع تشکيلوي. د معاهداتو عمده ښېګڼه دا ده چې په هغوی کې قانون تدوين سوی وي، يعني په ليکلې بڼه منځته راغلی وي. ټول معاهدات پر هغو هيوادو چې معاهده ئې امضا کړې او تصويب کړې وي لازم الاجراء دي. سربېره پر دې، داسي استدلال کېدای سي چې ځيني معاهدات پر هغو دولتو چې معاهده ئې امضا کړې هم نه وي د تطبيق وړ دي. کله چې زيات شمېر هيوادونه پر يوه پرنسيب موافقې ته سره ورسېږي، پراخ مشروعيت پر بناء کېږي. د قتل عام د جرايمو د مخنيوي او مجازات پيمان (۱۹۴۸)، The Convention on the Prevention and Punishment of the crime of Genocide، د مثال په توګه، د ۱۴۰ هيوادو له خوا تصويب سوی دئ. ځکه نو، داسي استدلال کېدای سي چې قتل عام تر بين المللي قانون لاندي راځي او دا معيار پر ټولو دولتو، چې د معاهدې غړی وي کنه، لازم الاجراء دئ. له دې امله دئ چې اوس خلګ، حتی که ئې دولتونو د قتل عام پر ضد معاهده تصويب کړې هم نه وي، د قتل عام په جرم محاکمې ته راکش سوي، محکوم سوي او مجازات سوي دي.

بين المللي عُرف د بين المللي قانون دوهمه درجه ډېره مهمه منبع تشکيلوي. يو ډېر پخوانی عرفي قانون د بحري اوبو د قلمرو قانون دئ چې د يوه هيواد د ساحل څخه تر درې ميله پوري غزېږي او دا هغه فاصله ده چې د توپ ګولۍ وررسېږي. که د وچې څخه د توپ ويشتل سوې ګولۍ تر تاسی ونه رسېږي، نو تاسي په بين المللي اوبو کې قرار لری. په بحر کي د بېړي چلولو مقررات او د ډيپلوماټيکو مناسباتو مقررات له عرف څخه

رازېږېدلي دي. ځيني وخت، دوامداره عرف په معاهداتو کې تدوينېږي.

د بين المللي قانون دريمه منبع د قانون عمومي پرنسيپونه دي. د لرغوني روم د (خلکو قانون) د دې پرنسيپونو اساس تشکيلوي او د عدالت بين المللي محکمې دا پرنسيپونه د «د متمدنو ملتونو له خوا د قانون عمومي منل سوي پرنسيپونه» بللي دي. تر هر څه مخکې، دا پرنسيپونه له بشري حقوقو څخه د سرغړونې له پاره په کار لوېږي. د دې پرنسيپونو له مخې د لايبيريا پخوانی جمهور رئيس چارلز ټېلر Charles Taylor په هالنډ کې د بين المللي محکمې له خوا په کال ۲۰۰۸ کې محاکمې ته راکش سو. پر ده باندې د جنسي غلامۍ او نورو جنسي تېريو تورونه لګول سوي دي. د بين المللي بشري قانون څخه بله سرغړونه دا وه چې تر ۱۵ کالو کښته عمر کوچنيان ئې په نظامي قواوو کې جلبول.

## د قانون اطاعت کول:

و قانون ته غاړه ايښوول په هر ډول حقوقي سيستم کې – که بين المللي سيستم وي که داخلي، ساده وي که پرله پېچلی – پر رضا کارانه [خپلي خوښي] اطاعت او اجبار coercion ولاړ دئ. رضاکارانه اطاعت هغه وخت منځته راځي چې تر واک لاندي خلک ځکه قانون ته غاړه ايږدي چې د هغه مشروعيت مني؛ يعني خلک قوانينو ته غاړه ځکه ايږدي چې هغه سياسي چارواکي مني چې قوانين ئې جوړ کړي دي اويا/هم د هغو قوانينو سره موافق دي. اجبار د تهديد، بندي کولو، اقتصادي تعزيراتو او نورو جزاګانو له لاري اطاعت ته د خلکو د مجبورولو پروسه ده.

رضاکارانه اطاعت عموماً ډېر مهم دئ، مګر ټولني يو له بله ډېر توپير لري. امريکايان د قانون رضاکارانه اطاعت ته ميلان لري؛ په ميانمر (برما) کې بيا د قانون اطاعت کول د نظاميانو له خوا د قوې په زور تر سره

کېږي.

د بین المللي قانون اطاعت زیاتره رضاکارانه دئ. عملي مشروعیت د بین المللي اطاعت کیلي تشکیلوي. هیوادونه ځکه بین المللي قانون ته غاړه ایږدي چي د نورو هیوادو له خوا د قانون اطاعت کول د دوی په ګټه دئ. تعرض، د بشري حقوقو څخه سرغړونه، او نور داسي اعمال اوس هم سر ته رسېږي، مګر دا ډول اعمال له ډېرو پراخو اعتراضونو سره مخامخ کېږي. لکه د امریکې د متحده ایالاتو په مشري د عراق یرغل له ډېرو بین المللي اعتراضونوسره مخامخ سو. د امریکې د متحده ایالاتو په شان یو زورور هیواد کولای سي پر بین المللي مخالفت باندي څه موده سترګي پټې کړي، مګر په وروسته کي به د خپل عمل قیمت تادیه کړي. د بوش اداره د عراق تر یرغل وروسته په دې ونه توانېدله چي د عراق د اشغال او بیا ودانولو په برخه کي د نورو هیوادو مالي او نظامي مرستي راجلبي کړي.

## د قانون اجرا [عملي] کول:

په ټولو حقوقي سیستمونو کي، د قانون اجرا کول د خپلمنځي همکارۍ او یا هم د مرکزي واک له لاري تر سره کېږي. په ابتدایي ټولنو کي د قوانینو او معیارونو عملي کول په خپل منځ کي یو له بله سره د همکارۍ څخه راپیل کېږي، وروسته په تدریج سره د قانون د عملي کولو مرکزي سیستم ته تکامل کوي. د باثباتو هیوادو په شان پرمختللي حقوقي سیستمونه، د دې له پاره چي خلګ د قانون اطاعت ته مجبور کړي، د قانون د عملي کولو پر رسمي سازمانونو (لکه پولیس) او تعزیراتو (لکه جریمه او بندي خانه) باندي تکیه کوي.

د ابتدایي ټولنو په شان، نړیواله کمیونیټي هم د قانون د عملي کولو له پاره پر خپلمنځي همکارۍ تکیه کوي، او تر اوسه هم په بین المللي سویه

د قانون د عملي کولو سازمانونو انکشاف نه دئ موندلی. مګر سره له دې هم، د يو مرکزي سيستم پر خوا د قانون عملي کولو حرکت ليدل کېږي. د مثال په توګه، تر دوهمې عمومي جګړې وروسته جنګي مجرمين په سزا ورسېدل. په دې نژدې وختونو کې د بوسنيا او نورو ځايو جنګي مجرمين محاکمې ته راکش سول. ډيپلوماټيک او اقتصادي تعزيرات هم مخ پر زياتېدو دي چې ځيني وخت اغېزمن هم دي. په ۱۹۹۱کال کې د ملګروملتو له خوا د عراق په مقابل کې د نظامي عمل تصويب او په ۱۹۹۹ کال کې د ناټو مداخله په کوسوو کې، دا ښيي چې د بين المللي قانون عملي کول د يو مرکزي سيستم پر لور ګامونه اخلي.

## د قانون په اړوند قضاوت کول [فتواورکول]:

په اوسنۍ نړۍ کې يو شمير بين المللي محکمې وجود لري. د دې محکمو پيدايښت د بين المللي حکميت دايمي محکمې Permanent Court of International Arbitration ته رسېږي چې اساس ئې د دې پېړۍ په پيل کې د هاګ د کنفرانس له خوا ايښودل سوی دئ. په کال ۱۹۲۲ کې د بين المللي حکميت دايمي محکمه د ملتونو د اتحاديې League of Nations د يوې برخې په توګه رامنځته سوه. په کال ۱۹۴۶ کې اوسنۍ د عدالت بين المللي محکمه International Court of Justice، چې د ملګرو ملتو سره تړاو لري، جوړه سوه. د عدالت بين المللي محکمې د بين المللي حکميت د دايمي محکمې څخه تکامل راکړی دئ. د عدالت بين المللي محکمه، چې ځيني وخت نړيواله محکمه هم بلل کېږي، د هالنډ د هاګ په ښار کې موقعيت لري، او ۱۵ قاضيان لري. دا قاضيان د ملګروملتو له خوا د يوه پرله پېچلي سيستم له مخې د ۹ کلنو دورو له پاره انتخابېږي. د ملګروملتو د امنيت شورا پنځه دايمي غړي هر

یو ئې یو قاضي د عدالت په بین المللي محکمه کي لري، او نور قاضیان ئې داسي انتخابېږی چي سیمه ییز انډول پکښې وساتل سي.

د عدالت پر بین المللي محکمې سربېره، یو شمېر نوري سیمه ئیزي محکمې هم وجود لري: د اروپا د عدالت محکمه او د بشري حقوقو اروپایي محکمه، د بشري حقوقو بین الامریکائې محکمه [دلته مطلب د امریکا د لویي وچي هیوادونه دي] او د مرکزي امریکا د عدالت محکمه [دلته هم مطلب د امریکا د لویي وچي هیوادونه دي]. یو له دې محاکمو څخه هم د داخلي محاکمو په اندازه قدرت نه لري، مګر د عدالت د بین المللي محکمې په شان د دې سیمه ییزو محاکمو اعتبار مخ پر زیاتېدو دئ.

## د بین المللي محاکمو صلاحیت:

له تیوریکي پلوه، د عدالت د بین المللي محکمې واک او صلاحیت ټولي بین المللي حقوقي منازعې په بر کي نیسي. حقوقي دعوې پر دوو لارو د عدالت بین المللي محکمې ته وړاندي کېږي. یوه دا چي دولتونه د نورو دولتو سره خپلي حقوقي منازعې و محکمې ته د قضاوت له پاره وړاندي کوي. بله داچي، د ملګروملتو یو اورګان یا یوه ایجنسي د کومي حقوقي مسألې په هکله د عدالت د بین المللي محکمې مشوره وغواړي.

د کال ۱۹۴۶ څخه بیا تر کال ۲۰۰۵ پوري، د عدالت بین المللي محکمې ته په اوسط ډول په یوه کال کي دوې دعوې وړاندي سوي دي. که څه هم چي په دې وروستیو کلونو کي دا شمېر یو څه زیات سوی دئ، مګر بیا هم د عدالت د بین المللي محکمې د پراخ صلاحیت په تناسب، دا شمېره ډېره لږ ده. د عدالت بین المللي محکمې ته د دومره لږ شمېر قضیو د وړاندي کولو یو فکتور دا دئ چي دولتونه باید په خپله خوښه قضیې [دعوې] د عدالت بین المللي محکمې ته وړاندي کړي، او دا ومني چي د

دغې محکمې قضاوت او تصمیم ته به ئې غاړه ایږدي.

## د بین المللي قانون اوعدالت کارول

**Applying International Law and Justice**

د قانون او عدالت ملاتړ په مجرد او انتزاعي توګه اسانه دئ، مګر په عمل کې ئې په کار اچول ډېر ګران کار دئ. موږ به د بین المللي قانون او د عدالت معیارونه د دولت او همدارنګه د افرادو په سطح کې تر څېړنې لاندې ونیسو.

د بین المللي قانون په اړوند زیاتره پخوانۍ لیکنې د جګړې د قانون په باب سوې دي. دا موضوع اوس هم د حقوق پوهانوله پاره عمده اهمیت لري، مګر د دولت او دولت تر منځ د جګړې پر موضوعاتو سربېره، اوس بین المللي قانون هڅه کوي چې د انقلاب او داخلي جګړې او هم ټروریزم موضوعات په تنظیم راکښېباسي.

### د عادلانه جنګ تیوري:

د (عادلانه جنګ) تیوري دوې برخې لري: د جنګ علت او د جنګ پرمخ بېول. غربي عنعنه پر دې ولاړه ده چې د جنګ علت هغه وخت عادلانه دئ چې بې له جنګه بله لار پاته نه وي، او له ځان څخه د دفاع په خاطر وي. همدارنګه، (عادلانه جنګ) د تناسب او تبعیض معیارونه هم په بر کې نیسي. د تناسب معنی دا ده چې د قوې اندازه باید د تهدید سره متناسبه وي. د تبعیض معنی بیا دا ده چې غیر محارب [هغه کسان چې په جنګ کې داخل نه وي] باید د قوې د استعمال هدف ونه ګرزي.

## د جنګ عادلانه علت:

د جنګ د عادلانه علت مفهوم اوس یوازې یوه تیوري نه ده. تر دوهمې عمومي جګړې وروسته، د نورنبرګ او ټوکیو د جنګي جرایمو محاکمو [tribunals] د جرمني او جاپان لیډران د تعرضي جنګ مسئول وبلل. په دې نژدې وختونو کې، د ملګروملتو محاکمو[tribunals] هغو کسانو ته چې په بالکان او رواندا کې په جنګي جرایمو محکوم وه، جزا ورکړه. همدارنګه، هغه معاهده چې د جرایمو بین المللي محکمه International Criminal Court ئې تأسیس کړه و همدې محکمې ته د (تعرض د جرم) په هکله صلاحیت ورکړی دئ. د تعرض جرم، د تعریف له مخې، هغه جنګي اعمالو ته ویل کیږي چې د ملګروملتو د منشور سره سر نه خوري. منشور پر دې ټینګار کوي چې د قوې تر استعمال مخکې باید د سوله ییز حل له پاره ټولې هڅې په کار ولویږي. د دې له پاره چې عادلانه وي، د جنګ څخه باید د وروستۍ چارې په توګه کار واخیستل سي، د مشروع قدرت له خوا اعلان سي، باید د ځان څخه د دفاع په خاطر وي، عدالت منځته راوړي، او د سولې د منځته راوړلو له پاره وي.

څرنګه چې، د تیورۍ په مقایسه، په عمل کې د صحیح او غلط سره بېلول ګران کار دئ، نو ښه به دا وي چې په ۲۰۰۳ کال کې د امریکا د متحده ایالاتو له خوا د عراق یرغل د مثال په توګه وڅېړو څو د جنګ د عادلانه علت د مفهوم په پرله پېچلتوب پوه سو.

ایا جنګ وروستۍ چاره وه؟ د امریکا جمهور رئیس جورج ډبیلو بوش په دې عقیده وو چې بې له جنګه بله لار پاته نه وه. ده د امریکا خلګو ته وویل: "تر یوې لسیزې زیات، د امریکا متحده ایالاتو او نورو هیوادو په حوصله مندۍ او عزتمندۍ سره هڅې وکړې چې د عراق رژیم بې له جګړې بې وسلې کړي ... د جګړې څخه د مخنیوي له پاره د ټولو لارو

چارو څخه کار واخیستل سو". د فرانسې جمهور رئیس جاک شیراک بیا د بوش سره په مخالفت کي خبرنګارانو ته وویل چي د ده په عقیده د عراق «بې وسلې کول» د سولي له لاري کېدلای سوای. "جنګ هر وخت بدترین حل دئ او هر وخت ناکامه لار ده. د جنګ د مخنیوي له پاره باید له هر څه څخه کار واخیستل سي".

ایا جنګ له ځان څخه د دفاع په خاطر وو؟ بوش استدلال کاوه چي د امریکا متحده ایالات تر تهدیدلاندي وو. د ده په عقیده، د دې امکان موجود وو چي ښایي عراق به د عامه تباهۍ وسلې تروریستانو ته ورکړي او یا ښایي په خپله ئې استعمال کړي. جمهور رئیس اعلام کړه چي: "خطر ښکاره دئ. د یوه مستقل هیواد په توګه د امریکا متحده ایالات چي د خپل ملي امنیت د تضمین له پاره د قوې څخه کار واخلي. او خطر به مخکي له دې چي د عمل له پاره ډېر ناوخته سي له منځه یووړل سي". مګر د شپېتو عیسوي سازمانومشرانو په یوه خپره سوې اعلامیه کي د دې کار سره خپل مخالفت اعلان کړ. د دوی استدلال دا وو چي د عادلانه جنګ د تیورۍ له مخي "د پېش بیني کېدونکي خطر په وړاندي د ځان دفاع په اخلاقي لحاظ پر حق ده، مګر د جنګ د مخنیوي له پاره جنګ کول په اخلاقي لحاظ منع دئ". د عراق په هکله، د دې ګروپ مشر وویل چي:

"زه د عراق له خوا د امریکا متحده ایالاتو ته قریب الوقوع خطر او تهدید نه وینم، ... له دې امله د عراق په مقابل کي نظامي عمل نامناسب دئ".

## د جنګ عادلانه سلوک:

د هاګ کنفرانس (۱۸۹۹- ۱۹۰۷ع) او هم د جینیوا پیمان د ممنوعه وسلو، د جنګ د بندیانو سره سلوک او داسي نورو مسایلو په هکله یو لړ

مقررات وضع کړي دي. په نورو معاهداتو کي بیا د بیالوجیکي او کیمیاوي وسلو لرل او کارول منع سوي دي. په دې نژدې وختو کي د جرایمو بین المللي محکمې د جنګي جرایمو یو پراخ لیست منځته راوړي دئ.

مګر سربېره پر دې هم، د جنګ د عادلانه سلوک په هکله ابهامات وجود لري. د جنګي بندیانوسره رفتار د دې ابهام یو ښه مثال وړاندي کوي. د عراق د ابوغریب په بندي خانه او د عراق په نورو سیمو کي له جنګي بندیانو سره د امریکا اردو او هم د سي آی اې د کارکوونکو چلند، د عادلانه جنګ د معیارونو څخه ښکاره تېرى وو. مګر په دې هکله چي پر طالبانو او القاعده باندي هم د جینوا کانوینشن مواد تطبیقېدای سي کنه، ابهام وجود لري. د طالبانو او القاعده جنګیالي چي امریکایانو په افغانستان او عراق کي ونیول، په کیوبا کي د ګوانتانامو بې په بحري اډه کې بندیان کړل. د امریکا متحده ایالاتو بالاخره دا موضع ګیري وکړه چي د طالبانو پر بندیانو د جینیوا د کانوینشن مواد تطبیقېږي، مګر د القاعدې غړي جنګېدونکي دښمنان دي. دوی د یوه ملت په نظامی سازمان پوري اړه نه لري، ځکه نو جنګي بندیان نه دي.

## پر افرادو باندي د بین المللي قانون او عدالت اجرا کول:

بین المللي قانون اوس د انفرادي افرادو د اعمالو سره هم سروکار لري. کولای سو دا نوی انکشاف پر درو موضوعاتو سره ووېشو: تر دوهمي عمومي جګړې وروسته محکمې [tribunals]، اوسنۍ بین المللي محکمې [tribunals] او د جرایمو بین المللي محکمه.

## تر دوهمي عمومي جګړې وروسته محکمې:

د لومړي ځل له پاره تر دوهمي عمومي جګړي وروسته انفرادي افراد

تر بین المللي قانون لاندي محاکمه سول. د نورنبرګ او ټوکیو په بین المللي محکمو کي د جرمني او جاپان نظامي او ملکي لیډران د تعرضي جنګ، جنګي جرایمو او بشري جنایاتو په جرم محاکمه سول. دوولس جرمنیان او اووه جاپانیان په اعدام محکوم سول او همدارنګه ډېر جرمنیان او جاپانیان بندیان کړل سول. درې مهم قضایي اساسات رامنځته سول:

- لیډران د هغو جنګي جنایاتو مسؤل دي چي د دوی په امر سر ته رسېدلي دي.
- لیډران د هغو جنګي جنایاتو مسؤل دي کوم چي د دوی تر لاس لاندي کسان ئې سر ته رسوي. مګر که لیډرانو د هغو جنایاتو د مخنیوي هڅه کړې وي او یا ئې جنایت کوونکو ته جزا ورکړې وي، نو بیا د دوی مسئولیت نه ګڼل کېږي.
- د اوامرو اطاعت کول د جنایاتو د سر ته رسولو له پاره معتبره دفاع نه ده. [یعني یو څوک په دې له مسئولیته نه خلاصېږي چي ووایي ما ته امر سوی وو].

## اوسنۍ بین المللي محکمې:

تر ۵۰ کاله غیابت وروسته، په ۱۹۹۰ کلونو کي بین المللي محکمې بیر ته راژوندۍ سوې. د۱۹۹۰ کلونو په دوران کي په بوسنیا Bosnia او رواندا Rwanda کي د بېساري بېرحمیو سر ته رسېدل د دې محکمو د منځته راتلو اړتیا رامنځته کړه. په دواړو ځایونو کي، پر خلګو تجاوزونه وسول، زخمي او ووژل سول؛ په بوسنیا کي مسلمانان د دې وحشتونو عمده قربانیان وه او سربیانو د۱۹۹۰ او ۱۹۹۵ کلونو تر منځ ډېر مسلمانان بې عز ته او وژل. په رواندا کي په ۱۹۹۴ کال کي، هوتویان Hutus متعرض قاتلین او توتسیان Tutsis د قتل عامونو قربانیان وه.

په بوسنیا او روواندا کې دې وحشتونو د نړۍ وجدان سره ولړزاوه او د دې لړزوونکي واقعیت په نتیجه کي، په کال ۱۹۹۴کې، یوه محکمه د بوسنیا او بله درواندا له پاره تأسیس سوه څو هغه کسان چې دا ډول وحشیانه ظلمونه ئې کړي دي محاکمې ته راکش کړي. د بوسنیا له پاره محکمه [د بالکان محکمه] د هالنډ د هاګ په ښار کي او د روواندا له پاره محکمه د تانزانیا هیواد د اروشا په ښار کي موقعیت لري. په کال ۱۹۹۹ کی د بالکان د محکمې واک پراخ سو څو د کوسوو جنګي جنایات هم په بر کي ونیسی.

د هاګ محکمې تر اوسه ۱۶۰ کسان د جنګي جنایاتو په جرم تورن کړي دي، چې په سلو کي ۹۵ ئې بندیان سوي دي. د هغو کسانو څخه چې د ۲۰۰۵ کال تر نیمایي پوري ئې محاکمه تکمیل سوې ده، په سل کي ۹۰ ئې محکوم سوي دي [یعني مجرم ثابت سوي دي] او تر ۴۰ کالو پوري قید پر راوتلی دئ؛ دا کسان د اروپا نورو هیوادو ته لېږدول سوي دي څو خپل د بندي توب دوره پوره کړي. تر ټولو مهمه محاکمه د سلوبدان ملاسویچ Slobodan Milosevic وه، ځکه چې هغه د پخوانۍ یوګوسلاویا جمهور رئیس وو. مګر ملاسویچ په کال ۲۰۰۶ کي د زړه د ناروغی له امله مړ سو او محاکمه ئې تکمیله نه سوه.

د روواندا محکمه د توکیو د جنګي مجرمینو تر محکمې، چې د دوهمي عمومي جګړې په پای کي تشکیل سوه، راوروسته لومړنۍ محکمه ده چې د یو حکومت مشر ته ئې جزا ورکړه. په کال ۱۹۹۸ کي د روواندا پخواني صدراعظم، جین کامبانا، پر قتل عام اعتراف وکړ او د محکمې له خوا په عمري بند محکوم سو. تر ۲۰۰۷ کال پوري، دې محکمې د ۳۶ کسانو محاکمه تکمیل کړه چې بې له ۵ کسانو نور ټول ئې په جزا محکوم سول.

## بین المللي جنايي محکمه:

په کال ۱۹۹۸ کي د ملګرو ملتونو له خوا د بین المللي جنايي محکمې د منځته راوړلو له پاره يو نړيوال کنفرانس داير سو. د کنفرانس په جريان کي ډېرو هيوادو غوښتل چي يوه داسي محکمه منځته راسي چي پراخ او مستقل قضايي قدرت ولري. د امريکا د متحده ايالاتو په شمول، يو لږ شمېر هيوادونو يوه کمزورې بین المللي جنايي محکمه (ICC) غوښتل. د قوي بین المللي جنايي محکمې سره د امريکا د متحده ايالاتو د مخالفت دليل دا وو چي ښايي د امريکا د متحده ايالاتو ليډران او نظامی پرسونل به د سياسي تحريکاتو له امله د محاکمې هدف وګرزي. د امريکا د متحده ايالاتو دې موقف سخت انتقادونه راوپارول. د مثال په توګه، يوه ايټالوي ډيپلوماټ خپل نظر داسي څرګند کړ: "زه باور نه سم کولای چي يو ستر ډيموکراټيک هيواد پر دې خبره ټينګار کوي چي د دوی عسکر دې نه محاکمه کيږي".

د امريکا د متحده ايالاتو ځيني غوښتني ومنل سوې، مګر بيا هم د حاضرو ۱۴۸ هيوادو له ډلي څخه په سلو کي ۸۰ هيوادونو د يوې نسبتاً قوي محکمې د منځته راوړلو په طرفداري رايي ورکړې.

# نهم فصل

## د امنیت لټول

## Pursuing Security

انسانان هر وخت د امنیت په لټه کي دي، مګر امنیت په اساني سره لاس ته نه راځي. ښايي یو علت ئې دا وي چي موږ انسانان د امنیت د لاس ته راوړلو په برخه کي پر غلطه لار روان یو. د امنیت عنعنوي لار پر دې تأکید کوي چي د ملي دفاع او د يرغل د مخنيوي له پاره باید ډېري وسلې ذخیره سي. د مثال په توګه، د ۱۹۴۸ څخه بيا تر ۲۰۰۷ ع کال پوري د نړۍ هیوادونو تقریباً ۴۳ تریلیونه ډالره په خپلو ملي نظامي عملیاتو او ملګروملتونو تقریباً ۴۹ بلیونه ډالره په سوله ساتونکو عملیاتو لګولي دي. یعني د سوله ساتونکو عملیاتو په مقایسه ۸۷۸ واره زیاتي پیسې د ملي امنیت په عملیاتو مصرف سوي دي. ښائې د ملګرو ملتونو د لومړني سرمنشي خبره رشتیا وي چي ویلي ئې دي: "جګړې ځکه پېښېږي چي خلګ د سولي پر ځای د شخړو له پاره تیاری نیسي".

جنګ د بشریت له ابتدا څخه وجود درلود. د یوې ډېټا (احصائیې) له مخي، په تېره زرمه کي تقریباً ۱۰۰۰ جنګونه پېښ سوي دي. ډېټا همدارنګه ښيې چي د تېري زرمي له پیل څخه د هیوادونو تر منځ جګړې زیاتي سوي دي چي په سلو کي ۳۰ ئې د ۱۸۰۰ کال راهیسي پېښي سوي دي. همدارنګه، ډېټا ښیي چي د ۱۰۰۰ میلادي کال راهسي یو سل او

پنځوس مليونه انسانان په جګړو کي مړه سوي دي چي په سلو کي ۷۵ ئې په شلمه پېړۍ کي مړه سوي دي. موږ نه يوازي ډېر زيات عسکر وژلي دي، بلکي ډېر زيات شمېر ملکي کسان مو هم وژلي دي. (د لومړۍ عمومي جګړې په دوران کي ۸,۴ مليونه عسکر او ۱,۴ مليونه ملکي کسان وژل سوي دي.) ناوړه خبرونه به لا ښايي په مخ کي وي. د امريکې جمهمور رئيس جان کينيډي په کال ۱۹۶۱ کي د راتلونکي زروي جګړې په هکله اخطار ورکړ چي: "بشريت بايد جنګ ته خاتمه ورکړي، کنه نو جنګ به بشريت ته خاتمه ورکړي".

## د جنګ علتونه:

ولي بايد جنګ وسي؟ دا هغه پوښتنه ده چي د پېړيو راهيسي محققين ورسره مخامخ دي. فيلسوفانو د نړۍ ليډرانو او د اجتماعي علومو پوهانو د جنګ د علت په باب بېلابېلي تيورۍ رامنځته کړي دي، مګر ډېر داسي ښکاري چي د انسانانو د جنګ کولو له پاره يو واحد علت وجود نه لري. کېداى سي چي د جنګ د علتونو په باب بحث پر درو کټه ګوريو ووېشو:

۱. د سيستم په سطحه کي تحليل
۲. د دولت په سطحه کي تحليل
۳. د فرد په سطحه کي تحليل

## د سيستم په سطحه کي د جنګ علتونه:

د جنګ علتونه ښايي يو لړ داسي فکتورونه وي چي د نړيوال سياسي سيستم په ختې کي اخښل سوي دي. د سيستم په سطحه کي د تشرېح له پاره له درو فکتورونو سره تماس نيسو.

**۱. د قدرت وېش (توزيع)** The Distribution of Power :

ځيني تحليل کوونکي په دې عقيده دي چې د بين المللي سيستم ثبات د قطبونو په شمېر (يعني دا چې څومره شمېر لوی قدرتونه موجود دي)، د دوی په نسبتي قوت او هم د قطبونو د قدرت په ثبات پورې اړه لري. شخړه بنايي هغه وخت منځته راسي چې، د مثال په توګه، سيستم د قدرت د انتقال او تحول سره مخامخ سي، يعني چې ځيني قدرتونه له صعود او ځيني له نزول سره مخامخ سي. تر يو حده، د مثال په توګه ويلای سو، چې لومړۍ عمومي جګړه ځکه پيل سوه چې استرو- هنګري امپراتورۍ Austro-Hungarian Empire، چې يو وخت ډېره قدرتمنده وه، غوښتل د خپل مخ پر ځوړه مقام ساتنه وکړي.

**۲. د سيستم انارشيستي طبيعيت:**

په يوه حساب، جنګونه ځکه پېښېږي چې د مخنيوۍ له پاره ئې کوم مرکزي قدرت وجود نه لري. د داخلي ټولنو پر خلاف، په بين المللي سيستم کي د قوانينو د جوړولو، عملي کولو او فتوی صادرولو منظمه او مؤثره پروسه وجود نه لري. د مثال په توګه، کله چې عراق د امريکې غوښتني ونه منلې، په بين المللي سيستم کي داسي محکمې وجود نه درلود چې عراق او يا امريکا محکمې ته احضار subpoena کړي. په پايله کي ئې جنګ رامنځته سو. دا ډول سيستم چې په هغه کي هر څوک د خپل ځان د ساتني په فکر کي وي، نا امنيتي منځته راوړي. له دې امله، هيوادونه ځکه وسلې لاس ته راوړي چې نور هيوادونه هم دا کار کوي.

**۳. د سيستم په سطحه کي اقتصادي فکتورونه:**

توليدات او د طبيعي موادو استعمال هغه اقتصادي فکټورونه دي چې شخړي او جګړې منځته راوړي. د مثال په توګه، کله چې عراق په کال ۱۹۹۰ کي پر کويټ باندي په حملې کولو سره د پټرولي توليداتو مهمو

منابعو ته خطر او سعودي عربستان ته تهدید پېښ کړ، د امریکې په مشرۍ هغو هیوادونو چې پر پټرولو باندي متکي وه د سعودي عربستان د دفاع او د کویت (او د تېلو) د آزادولو له پاره په بېړه ورودانګل. د ثروتمندو او غریبو هیوادو تر منځ خلا هم د سیسټم په سطحه کي یو فکتور ګڼل کېدای سي. ځیني تحلیل کوونکي په دې عقیده دي چې د ټروریزم ریښې ځکه په جنوب یعني غریبو هیوادو کي دي چې د ثروت دا ډول خلا وجود لري.

## د دولت په سطحه کي د جنګ علتونه:

جنګ کېدای سي چې د ځینو دولتونو په خټه کي اخښلي وي. ځیني وختونه دولتونه د داخلي جریاناتو او شرایطو له امله په جنګونو لاس پوري کوي. داسي کېدای سي چې یو لړزانده حکومت، د دې له پاره چې پر قدرت پاته سي یو خارجي بحران منځ ته راوړي. په داسي حالت کي د خلګو توجه د داخل څخه و خارج ته اوړي او خلګ د لړزانده حکومت پر شاوخوا راټولېږي. پوهان دې عمل ته د داخلي بحران خارجي کول وایي. داسي شواهد وجود لري، چې د مثال په توګه، انقلابي رژیمونه د دې له پاره چې خپل قدرت ټینګ کړي، د نورو هیوادو سره شخړي منځته راوړي. ډېر کسان په دې باور دي چې د ارجنتاین نظامي رژیم په کال ۱۹۸۲ کي د فاکلیند پر جزایرو باندي د حملې تصمیم ځکه ونیوی چې غوښتل ئې د ارجنتاین د خلګو توجه د داخلي اقتصادي مشکلاتو څخه واړوي.

## په فردي سطحه کي د جنګ علتونه:

کېدای سي چې د جنګ علتونه د انفرادي لیډرانو په کرکټر پوري اړه ولري او د لیډرانو شخصي خصوصیات د جنګ په رامنځته کولو کي رول

ولوبوي. يو ليډر ښايي د داسي پر سوناليټۍ (شخصيت) خاوند وي چي له احتياط څخه د کار اخيستلو پر ځای د احتمالي خطر د ناوړو عواقبو risk منلو ته تياروي او يا هم له روحياتي پلوه د قدرت د لاسته راوړلو تنده ورسره زياته وي. د پرسوناليټي زيات تحليل کوونکي په دې باور دي چي صدام حسين د زيات قدرت او زيات تسلط په لټه کي وو. د دې ډول کر کټر په لرلو سره د ده له پاره مشکله وه چي د ملګرو ملتو د زروي وسلو د مبصرينو سره همکاري وکړي. انفرادي تجربې او احساسات هم عمده رول لرلای سي. دا احمقانه پوښتنه نه ده چي مثلاً پر جمهور رئيس بوش باندي به په کال ۱۹۹۳ کي د عراق له خوا په کويټ کي د ده د پلار (مشر بوش) د وژلو هڅي څومره اثر درلودلی وي.

د جنګ علتونه چي به هر څه وي، دا مهمه خبره بايد په پام کي ولرو چي جنګ به د يوې سياسي وسيلې په توګه دوام ځکه ولري چي دا وسيله کار ورکوي. هيوادونه، چي بل هيواد تهديد کړي او يا حمله پر وکړي، ځنې وختونه خپل هدف لاسته راوړي. لوی قدرتونه، که دوی په خپله جنګ پيل کړي او يا پر دوی حمله وسي، زياتره وخت جنګ د دوی په ګټه ختمېږي.

## ټروريزم:

کله چي په کال ۱۹۹۹ کي په يوه سروې کي د امريکې له خلګو څخه وپوښتل سوه چي د دوی په نظر د امريکې د خارجي پاليسۍ مهمه موضوع به څه وي، يوازي په سلو کي ۱۲ ټروريزم ته ګوته ونيول. څلور کاله وروسته، يعني د سپټمبر د يوولسمي تر پېښي وروسته، په سلو کي ۷۵ امريکايانو ټروريزم د امريکې له پاره تر ټولو خطرناکه تهديد وباله.

د ټروريزم په هکله د څېړني يو لوی مشکل دا دئ چي په پراخه توګه

منل سوی تعریف ئې وجود نه لري. دا یوازې د ټروریزم د معنی مشکل نه دئ. مشکل دا دئ چې په پراخه توګه د منل سوي تعریف نه موجودیت له ټروریزم سره د مبارزې په لار کې د بین المللي قرادادونو منځته راوړل او هم نوري بین المللي هڅې متأثري کړي دي. په خاصه توګه، ملګروملتونو د زیاتو کلونو راهیسي وخت ناوخت هڅه کړې ده چې د ټروریزم له پاره یو جامع بین المللي قراداد رامنځته کړي، مګر د ټروریزم پر تعریف باندي یو عمومي توافق وجود نه لري. د مثال په توګه، لږ پرمختللي هیوادونه غواړي د اشغال پر ضد او د آزادۍ له پاره مبارزه ټروریزم ونه بلل سي. په ملګروملتونو کي یوه ډیپلومات، وروسته له ډېرو مباحثو څخه، داخبره وکړه چي: "ساده حقیقت دا دئ چي ټروریزم و بېلو اولسونو ته بېلي معناوي لري. سره له دې چي ټوله نړۍ د بین المللي ټروریزم سره اخته ده، بیا هم د ټروریزم په هکله پر یو شمېر موضوعاتو توافق وجود نه لري".

سره له دې چي د ټروریزم د تعریف په هکله توافق وجود نه لري، موږ په دې کتاب کي د ټروریزم لغت په لاندي تعریف سره کارولی دئ.

۱. ټروریزم تشدد violence دئ
۲. د انفرادي اشخاصو، غیر دولتي سازمانو او مخفي دولتي ایجنټانو له خواسر ته رسېږي.
۳. په خاصه توګه ئې هدف ملکي خلک وي.
۴. د حملې له پاره د مخفي میتودونو څخه کار اخلي، لکه په موټر کي بم ایښوول او یا الوتکه اختطاف کول.
۵. هڅه کوي چي پر سیاست اثر وښندي.

د دې تعریف له مخي، ټروریزم د ملکي خلګو او ملکي تأسیساتو په نښه کولو سره یوې ډلي خلګو ته تاوان په دې موخه رسوي چي په بله ډله کي بېره ایجاد کړي. د تروریستانو هدف یوازي د خلګو وژل، زخمي کول

او نور مادي تخریب نه دئ. بلکي اصلي موخه ئې دا ده چي په هغو کسانو کي بېره او مایوسي ایجاد کړي چي د دوی ټروریستي عملویني او یا د هغه په باب [د میډیا له لاري] خبرېږي. که څه هم چي تاکتیکونه ئې سره ورته دي، د داخلي ټروریزم او بین المللي تروریزم تر منځ توپیر موجود دي. داخلي ټروریزم د داخلي خلګو له خوا د داخلي اهدافو له پاره د داخلي خلګو په نښه کول دي. بین المللی ټروریزم بیا د خارجي هدف، که په خارج کي وي او که په داخل کي وي، په نښه کول دي. په کال ۱۹۹۵ کي د امریکې د اوکلاهما د ښار پر فډرالي بلډینګ باندي د تیموتي مک وې Timothy McVeigh حمله، چي په هغه کي ۱٦۰ کسان مړه او ۸۰۰ کسان زخمي سول، داخلي ټروریزم وو. د سپټمبر د یوولسمي حمله بیا د بین المللي ټروریزم یو مثال دئ.

د ټروریزم د پورتني تعریف له مخي موږ دا استدلال، چي ګواکي د ټروریزم له لاري د شریفانه اهدافو لاسته راوړل جواز لري، ردوو. د دې ادعا یو مثال په عراق کي د القاعده د عملیاتو مشر، ابومصاب زرقاوي وو، چي په وروسته کي د امریکې په هوائي حمله کي ووژل سو. ده ادعا کول چي: "د ټولو کفارو وژل په هر هغه وسلو چي موږ ئې په لاس کي لرو... جایز دي. حتی که بې وسلې کفار او بې وسه قربانیان، لکه ښځي او کوچنیان، ټول یو ځای ورسره مړه سي".

ځیني کسانو ته به دا پوښتنه پیدا سي چي ولي، د مثال په توګه، که یو ملکي مخالف په یو لوی مارکېټ کي د موټري بم په چاودلو سره زیات شمېر اولسي خلګ ووژني تروریست بلل کېږي، او که چیري بیا د یو نظامي پیلوټ د بمبارۍ په نتیجه کي اولسي خلګ مړه سي تروریست نه بلل کېږي؟ د دې سوال یو جواب دا دئ چي نیت [اراده] intention ډېر مهم دئ. د تروریستانو نیت او اراده د غیرمحاربو خلګو وژل دي. که څه

هم چې ځيني استثنأت وجود لري، نظامي پرسونل پر نظامي اهدافو حمله کوي. غیرمحارب کسان به ښايي په سهوه کې مړه او يا زخميان سي، مګر غير محاربين د حملې هدف نه وي.

د دې طرز تفکر معنی دانه ده چې دا ډول نظامي عمليات د منلو وړ دي. دا ډول عمليات د جنګي جرايمو په ډله کې راځي چې عاملين ئې بايد ملي او بين المللي محاکمو ته راکش کړل سي. دې خبري ته هم بايد پام وسي چې ټولي هغه حملې چې د امريکې د متحده ايالاتو له خوا د ټروريزم په توګه طبقه بندي سوي دي، د ټروريزم د پورته ذکر سوي تعريف له مخي د ټروريزم په کټه ګوري کي نه راځي. د مثال په توګه، په ۲۰۰۰ کال کي په عدن کي د امريکې پر تخريبي بېړۍ USS Cole باندي حمله د واشنګټن له خواد ټروريزم په توګه اعلام او وغندل سوه. مګر بيا هم، سره له دې چې دا يو ځانمرګی عمل وو، چې د منفجره موادو ډکي وړوکي کښتۍ په وسيله سر ته ورسېدی او ۱۷ کسه د کښتۍ کارګران پکښي مړه سول، زموږ د ټروريزم د تعريف له مخي ټروريزم ځکه نه سي بلل کېدای چي هدف ئې يوه نظامي بېړۍ وه. [يعني د دې ټروريستي عمل هدف اولسي خلګ نه وو، بلکي هدف ئې لويه امريکايي جنګي بېړۍ وه چي عدن ته د تېلو د اخيستلو له پاره راغلې وه].

## د ټروريزم سرچينې:

دلته موږ د سياسي ټروريزم د دوو سرچينو سره سروکار لرو. يو ئې دولتي ټروريزم او بل بيا د ترانسنېشنل ګروپونو څخه جوړ ټروريزم دئ. موږ به دلته وګورو چي دا دواړه يو له بله سره نژدې اړيکي لري.

دولتي ټروريزم هغه دئ چي د مخفي دولتي عاملينو له خوا په مستقيمه توګه سر ته رسېږي او يا د هغو کسانو له خوا سر ته رسېږي چي

د یوه دولت تشویق او مالي ملاتړ ورسره وي. د امریکې د متحده ایالاتو د خارجه چارو وزارت پرله پسې پر کیوبا، ایران، سوډان او سورئې باندي د دولتي ټروریزم تور لګوي. عراق او شمالي کوریا ئې له دې لیست څخه وایستل او لیبیا هم په هغه هیواد کي د ریفورم له امله د لیست څخه ووتله. هر یو له دې هیوادو څخه د ټروریزم تورونه په کلکه ردوي، او د امریکې د متحده ایالاتو ځیني تورونه د ټروریزم له هغه تعریف سره چي موږ ئې دلته کاروو، سر نه خوري. د دولتي ټروریزم تورونه د امریکې پر متحده ایالاتو باندي هم لګول سوي دي. د سعودي عربستان د علماوو یو ۱۲۶ کسیز ګروپ په یوه مشترکه اعلامیه کي لیکي: "موږ د امریکې متحده ایالات او د هغه اوسنی حکومت، د اسرائیلو په شمول، د بین المللي ټروریزم اوله درجه مسئولین بولو".

ترانسنېشنل تروریستي ګروپونه، چي د بین المللي غیر دولتي سازمانو څخه جوړ دي، د شمېر له مخي ډېر زیات سوي دي او ترانسنېشنل تروریستي اعمال سر ته رسوي. د امریکې د متحده ایالاتو خارجه وزارت، د القاعدې په شمول، ۴۰ دا ډول سازمانونه مشخص کړي دي.

د القاعدې سازمان یقیناً چي د دې ډول سازمانو په ډله کي تر ټولو مشهور سازمان دئ، چي عملیات ئې د ترانسنېشنل ټروریزم په هکله موږ ته یو نظر راکوي. د امریکایي منابعو په قول، د القاعده سازمان په ۱۹۸۰ کلونو کي د اسامه بن لادن له خوا، چي په یوې بډایي سعودي کورنۍ کي زېږېدلي دئ، د هغو عربو سره د مرستي له پاره تأسیس سو چي په افغانستان کي د شوروي اتحاد پر ضد جنګېدل. کله چي شورویان په کال ۱۹۸۹ کي له افغانستان څخه وایستل سول، د بن لادن توجه د امریکې خوا ته واوښتله. بن لادن د سعودي عربستان دوو مقدسو ښارو، یعني مکې [معظمې] او مدینې [منورې]، ته نژدې د امریکایي قواوو موجویت او هم د

امریکا له خوا د اسرائیلو ملاتړ ډېر سخت په قهر کړی وو. ده په کال ۱۹۹۸ کې د (یهودو او صلیبیانو پر ضد جهاد) تر عنوان لاندې یوه فتوی صادره کړه چې په هغه کې اعلان سوي دي چې: "د امریکایانو او د هغوی د متحدینو د ملکي او نظامي کسانو وژل د هر مسلمان، په هر ځای او هره وسیله چې ممکنه وي، وظیفه ده". په راوروسته کې، د امریکایي مقاماتو په قول، بن لادن او د ده پیروانو یو لړ تروریستي حملې پلان او عملي کړې چې تر ټولو ویجاړوونکې ئې د سپټمبر د یوولسمي حمله وه.

## د ټروریزم علتونه:

که څه هم چې د ۲۰۰۱ کال د سپټمبر د یوولسمي حملو ټروریزم په بین المللي اجندا کې رامخته کړ، مګر ټروریزم له ډېر پخوا څخه وجود درلود. د ټروریزم په علتونو باندې پوهېدل د ټروریزم سره د مبارزې مهم اړخ تشکیلوي.

د سیسټم په سطحه کې تحلیل system-level analysis ښایي دا استدلال رامنځته کړي چې سیاسي خشونت violence تر یوه حده د ثروت د غیر مساویانه توزیع محصول دئ. دا شی له ډېر پخوا څخه موجود وو، مګر ګلوبلایزېشن د ثروت خلا ته ډېره ښکاره توجه واړوله. کله چې په کال ۲۰۰۲ کې د نړۍ لیډران په مکسیکو کې د ګلوبلایزېشن او اقتصادي پرمختګ په اړه د بحث له پاره راټول سوي وه، ډېرو وینا کوونکو د غربت او خشونت د ارتباط په هکله خبري وکړي. د ملګرو ملتو د عمومي اسامبلې مشر غربت د (خشونت او ناامیدۍ مورینه) وبلله.

د دولت په سطحه کې تحلیل د سپټمبر د یوولسمي د حملې په هکله ښایي استدلال وکړي چې د ټروریزم علت تر یوه حده د اسرائیلو او فلسطینیانو تر منځ ویني تویونه او له اسرائیلو څخه د امریکې طرفداري

ده. نور ممکنه فکتورونه په منځني ختیځ، په تېره بیا په عراق کي، د امریکې د متحده ایالاتو د نظامي قواوو موجودیت او د امریکایانو له خوا په سعودي عربستان او نورو ځایونو کي د دیکتاتوري رژیمونو حمایه بلل کېدای سي.

په عملي سطحه کي ویلای سو چي ټروریزم ځکه منځته راځي چي مؤثریت لرلای سي. لکه یو کارپوه چي وایي: "ټروریزم د ټروریست د تاکتیکي اهدافو د لاس ته راوړلو له پاره  د یوې ارزاني، کم خطره او مؤثري وسیلې په توګه ثابت سوی دئ". د دې ډول استدلال له مخي، ټروریزم د یو څو لېونیو متعصبینو نامعقول عمل نه دئ. بلکي، ټروریستي عمل د هغو کسانو له خوا سر ته رسېږي چي د خپلو مخالفینو د له منځه وړلو له پاره دا کار ضروري، مشروع او مؤثر بولي. د دوی پلویان استدلال کوي چي دا عمل ضروري ځکه دئ چي ښایي د یو مسلح دولت په مقابل کي د مقابلې یوازنۍ لار وي.

د تروریستي عملیاتو له پاره د اوسني عصر شرایط هم برابر دي. لومړی دا چي، اوسنۍ تکنالوجۍ د تروریستانو د وسلو قدرت زیات کړی دئ. منفجره مواد تر پخوا زیات مرګیاني سوي دي، د لویو الوتکو څخه د میزایل په توګه کار اخیستل کېدای سي، او د دې خطر زیات سوی دئ چي ټروریستان داسي موادو او وسایلو ته لاره ومومي چي بیالوجیکي، کیمیاوي او راډیولوجیکي حملې سر ته په ورسوي. دوهم دا چي، مخ پرزیاتېدونکي ښاري کېدلو دا زمینه برابره کړې ده چي خلګ یو له بله نژدې سره واوسي او د ټروریستي حملو له پاره اسانه هدف وګرزي. په تېره بیا په لویو او لوړ پوړو تعمیراتو او د سپورت په سټډیمونو کي د زیاتو خلګو راټولېدل د تروریستانو کار اسانه کوي. دریم دا چي، عصري کمیونیکېشن هم د ټروریزم مؤثریت ځکه زیات کړی دئ چي د

ټرویستانو هدف د خلګو وژل او زخمي کول نه دئ. بلکي د ټروریزم هدف دا دئ چي خپلو غوښتني او داعیې له پاره توجه راجلب کړي، او یا داسي تشویش خلق کړي چي پر حکومتونو باندي دومره فشار وارد کړي څو د تروریستانو سره مذاکرې ته حاضر سي. که چیري میډیا د ټروریستي اعمالو خبرونه خپاره نه کړي، نو د دوی د حملو مؤثریت به په نژدې قربانیانو کي محدود پاته سي چي ښایي د تروریستانو اهداف سرته ونه رسېږي.

# لسم فصل

## د ملي اقتصاد رقابت

## National Economic Competition

د تېرو فصلونو د لوستلو څخه به ښايي، تر ډېره حده، دې نتيجې ته رسېدلي ياست چې اقتصاد سياست او سياست اقتصاد دئ. په دې او راتلونکي فصل کي بين المللي سياسي اقتصاد او هم دا چې اقتصاد او سياست څرنګه يو په بل کي سره اخښلي دي، څېړل کېږي.

د موضوع تر څېړلو مخکي، دا خبره ډېره مهمه ده چې تاسي په هغو اقتصادي اصطلاحاتو او مفاهيمو، چې تاسي په وروسته کي ورسره مخامخ کېږی، ځانونه ښه پوه کړئ او تفاوتونه ئې وپېژنی. ناخالص ملي توليد Gross National Product (GNP)، چې ناخالص ملي عايد Gross National Income (GNI) هم بلل کېږي، د يوه هيواد د اتباعو او بزنسونو د ټولو داخلي او بين المللي اقتصادي فعاليتونو مجموعي ارزښت دئ. ناخالص داخلي توليد Gross Domestic Product (GDP) د يوه هيواد په دننه کي د ټولو داخلي او خارجي افرادو او کمپنيو د اقتصادي فعاليتونو مجموعي ارزښت دئ. ځيني منابع په خپل راپور کي د GNP او GDP اومه اعداد کاروي؛ ځيني نور منابع بيا دا دوې اندازه ګيرئ د خريد د قوې د تساوي [مساوي والي] purchasing power parity (PPP) سره عياروي او دGNP/PPP او GDP/PPP [يعني GNP تقسيم پرPPP اوGDP تقسيم پرPPP] څخه کار اخلي. دغه پروسه GNP اوGDP د

غذايي موادو او نورو خريداريو د قيمت د تفاوت د په نظر کي نيولو سره د امريکايي ډالر له نسبي ارزښت سره عياروي. د مثال په توګه، په کال ۲۰۰۵ کي د مکسيکو د نفر پر سر ناخالص ملي توليد per capita GNP (۷۳۲۰ ډالره) وو. مګر د ژوند د اړتياوو د ارزانوالي له امله ئې GNP/PPP ۱۰۰۳۰ډالره، يعني ترGNP په سل کي ۳۷ زيات وو. په مقابل کي بيا د جاپان د نفر پر سر ۳۸۹۸۰GNP ډالره او د ژوند د اړتياوو د ګرانوالي له امله يي GNP/PPP په سل کی ۱۹ لږ (۳۱۴۱۰ ډالره) وو.

## د بين المللي سياسي اقتصاد تيوري ګاني:

ډېر پوليټيکل ساينټسټان په دې باور دي چي اقتصادي شرايط په نړيوال سياست کي تعينوونکی عامل دئ. هغه بېلابېلي تيوريګاني چي پوهانو د سياست او اقتصاد تر منځ د فعل او انفعال د تشريح کولو له پاره وړاندي کړي دي پر اقتصادي نېشنليزم، اقتصادي انټرنېشنليزم او اقتصادي ساختار باندي وېشل کېدای سي.

## اقتصادي نېشنليزم:

اقتصادي نېشنليزم د عملي سياست realpolitik پر دې عقيده ولاړ دئ چي دولت بايد خپل اقتصادي قدرت د ملي ګټو د پر مخ بېولو له پاره په کار واچوي. اقتصادي نېشنليستان په دې باور دي چي د اقتصاد د تقويه کولو لپاره بايد د دولت د قدرت څخه کار واخيستل سي. جرمنی اقتصادپوه جورج ليست George List په خپل مهم او اغېزمن اثر کي، چي د سياسي اقتصاد ملي سيسټم National System of Political Economy (۱۸۴۱) نومېږي، استدلال کوي چي د افرادو سعادت او نېکمرغي د هغوی له ملت او د هغه په سياسي څرګندوی يعني ملي –دولت

سره تړاو لري. له دې امله، لیست د داخلي صنایعو د انکشاف او ساتنې له پاره د حکومت د قوي عمل پلوي کوله. ده د آزاد تجارت ایډیا رد کړه او په عوض کې ئې د داخلي صنایعو پر حفاظت او نورو داسې تجارتي پالیسیو عقیده درلوده چې د داخلي اقتصاد له پاره ګټوري وي. لیست همدارنګه د حکومت له خوا و صنایعو ته د مرستې [سبسیدي] ورکولو طرفدار وو او غوښتل ئې چې حکومت په حمل او نقل transportation، تعلیم او نورو زېربنایي سکتورونو کې، چې د اقتصاد په پرمختګ کې مرسته کوي، سرمایه ګذاري وکړي. د اقتصادي نېشنلیستانو له نظره، سیاسي اهداف باید اقتصادي پالیسي اداره کړي ځکه چې منظور او هدف د دولت د قدرت زیاتېدل دي.

دې هدف ته د رسېدلو لپاره، اقتصادي نېشنلیستان د یو لړ سیاسي ستراتیژي ګانو څخه کار اخلي، چې د کمزورو هیوادو استثمارول یوه له دغو ستراتیژي ګانو څخه شمېرل کېږي. کلونیالیزم، یا امپریالیزم، د نورو هیوادو او خلکو د مستقیم کنټرول له لارې خپلې ملي اقتصادي ګټې لاسته راوړي. د همدې محرکه قوې له مخې، اروپایانو د نورو هیوادو یرغل ته ملا وتړله او ستري استعماري امپراتورۍ ئې جوړې کړې. کلاسیک کلونیالیزم تر ډېره حده له منځه تللی دئ، مګر کتونکي په دې باور دي چې نیوکلونیالیزم (نوی امپریالیزم، غیر مستقیم کنټرول) اوس هم دوام لري؛ له اقتصادي پلوه پر مخ تللي شمالي هیوادونه له اقتصادي پلوه لږ پر مخ تللي جنوبي هیوادونه استثماروي. اقتصادي ملاتړ protectionism یوه بله وسیله ده چې د اقتصادي نېشنلیستانو خوښه ده؛ ګمرکي تعرفې، د صادراتي مالونو تولیدونکو ته د مالیاتي امتیازاتو د ورکولو له لارې د داخلي صنایعو ملاتړ د دې ډول وسایلو مثالونه دي. اقتصادي نېشنلیستان پر آزاد تجارت او اقتصادي ګلوبالیزېشن ځکه بدګومانه دي چې د یوه

هیواد څخه اقتصادي برلاسي اخلي او استقلال ئې کمزوری کوي.

## اقتصادي انټرنېشنليزم:

اقتصادي انټرنېشنليزم، چې اقتصادي ليبراليزم هم ورته ويل کېږي، د بين المللي سياسي اقتصاد يو بل تيوريکي روش دئ. د اقتصادي ليبراليزم نور اړوند اصطلاحات سرمايه داري capitalism، ليسې فير laissez-faire او آزاد تجارت free trade دي. اقتصادي انټرنېشنليستان ليبراليستان دي. دوی په دې عقيده دي چې بين المللي اقتصادي روابط بايد پر همکاري ولاړ وي، ځکه چې په بين المللي اقتصاد کي د نېکمرغۍ او برياليتوب امکانات د ټولو له پاره وجود لري. د دې لپاره چي نېکمرغي پراخه سي، اقتصادي انټرنېشنليستان د آزاد تجارت پلوي کوي او په دې عقيده دي چې اقتصادي مناسبات بايد له سياسي بنديزونو څخه خلاص وي. ځکه نو اقتصادي انټرنېشنليستان (د اقتصادي نېشنليسټانو بر خلاف) د هر هغه څه پر ضد دي چې د آزاد تجارت، آزادي سرمايه ګذارۍ او د پيسو د آزادي راکړه ورکړي مخه نيسي؛ ګمرکي تعرفات، د داخلي صنايعو سره مرسته [سبسيدي]، او د تعزيراتو وضع کول ئې څو مثالونه دي.

د اقتصادي ليبراليزم منشاء د سرمايه دارۍ capitalism په ريښو کي پرته ده. د کاپيټاليستي تيوري يو ډېر پخوانی پلوي، آدم سميت Adam Smith، په کال ۱۷۷۶ کي، د ملتونوثروت Wealth of Nations Theپه نوم مهم اثر کي ليکي: "خلک د نېکمرغۍ په پلټنه کي خپلي انفرادي ګټې په نظر کي نيسي" او دې عمل [په خپلو انفرادي ګټو پسي تلل] د «رقابت يو نامريي» لاس منځته راوړی دئ چي په نتيجه کي ئې ډېر اغېزمن اقتصاد [کاپيټاليزم] خلق کړی دئ. له دې امله، آدم سميت

په تجارت کي د هر ډول سیاسي مداخلې مخالف وو. ده استدلال کاوه چي که «که یو خارجي هیواد یو مال تر هغه څه چي موږ ئې تولیدوو ارزانه تهیه کولای سي، ښه دا ده چي موږ هغه مال رانیسو...».

د هغه سوچه کاپیټالیزم طرفداران چي آدم سمیت ئې دفاع کوله، اوس ډېر لږ دي. پر ځای ئې، زیاتره اوسني اقتصادي لیبرالان د یوداسي مرکب اقتصاد غوښتونکي دي چي په هغه کي د دولت له لاري د انحصاراتو د جوړېدلو مخه نیول کېږي او د ظالمانه رقابت د اغېزې د کمولو لپاره ګامونه اخیستل کېږي. په بین المللي سطحه کي، لیبرالان په کاپیټالیزم کي د ریفورم طرفدار دي او په کپیټالیزم افراطي تغیر نه غواړي.

## اقتصادي جوړښت:

د اقتصادي جوړښت پلویان په دې باور دي چي اقتصادي جوړښت پالیسي ګاني ټاکي. د دوی په عقیده، دا چي نړیوال سیاست څرنګه څرخي د نړۍ په اقتصادي جوړښت structure پوري اړه لري. د اقتصادي جوړښت د تیورۍ له مخي، نړۍ پر لرونکو او نه لرونکو هیوادونو باندي وېشل سوې ده. [haves and have nots]. لرونکي هیوادونه هڅه کوي نه لرونکي هیوادونه کمزوري او غریب وساتي څو په اسانی سره ئې استثمار کړای سي. د ثروت او قدرت د نامتوازن وېش د له منځه وړلو لپاره، د اقتصادي جوړښت پلویان په اقتصادي سیسټم کي د عمیق او افراطي بیاجوړوني restructuring غوښته کوي. د اقتصادي جوړښت د نظرئې یو لړ فرعي تیوري ګاني په لاندي ډول دي:

مارکسستي تیوري په دې لړۍ کي تر ټولو مخکي ده. دا تیوري د کارل مارکس او فریدریک اینګلز پر نظریاتو ولاړه ده. دوی په کال

۱۸۴۸ کي په خپله مشهور اعلامیه، کمونیست مانیفست Communist Manifesto، کي دا تشریح کړه چي د ثروت د توزیع پر سر د ملکیت لرونکي بورژوازي او غریبي پرولتاریا تر منځ مبارزه د سیاست جوهر تشکیلوي. د شوروي د کمونیست ګوند لومړي مشر، ولادیمیر ایلیچ لنین، د مارکسیزم څخه په بین المللي سیاست کي کار واخیست. د امپریالیزم د کپیټالیزم د لوړترینی مرحلې په توګه(۱۹۱۶)، مشهور اثر کي لنین استدلال کاوه چي بورژوازي لیډرانو خپل پرولتاري کارګران داسي غولولي دي چي د امپریالیزم له لاري د نورو پرولتاري خلګو د استثمار ملاتړ وکړي. له دې امله نو طبقاتي مبارزه د بورژوازي او پرولتاري هیوادو او خلګو تر منځ بین المللي طبقاتي مبارزه هم په بر کي نیسي.

د وابستګۍ dependency تیوري، د مارکسیزم په شان، پر دې ولاړه ده چي په لړ پرمختللو هیوادو کي وروسته پاته والی او فقر د پرمختلو هیوادو له خوا د دوی د استثمار نتیجه ده. سره له دې هم، د وابستګۍ تیوري پر ملي هڅو تکیه کوي او د مارکسیزم په خلاف، په دې باور نه ده چي که د نړۍ پرولتاریا د بورژوازي له یوغه آزاده سي نو ټول به سره متحد سي. د وابستګۍ د تیورۍ پلویان په دې باور دي چي پرمختللي هیوادونه وروسته پاته هیوادونه ځکه استثماروي چي پرمختللي هیوادونه ارزانه اولیه تولیداتو (لکه تېل) ته اړتیا لري، د خپلو پخوتو لیداتو له پاره پراخو بازارونو او د کار ارزانه قوې ته اړتیا لري. څرنګه چي دا ډول اقتصادي جوړښت پرمختللي هیوادونه نور هم بډای او وروسته پاته هیوادونه غریب ساتي، د وابستګۍ د تیوري پلویان استدلال کوي چي پرمختللي هیوادونه داسي پالیسي ګاني رامنځته کوي چي وروسته پاته هیوادونه وابسته dependent وساتي. پر پرمختللو هیوادو باندي د وروسته پاتو هیوادو وابستګي پر څو لارو ساتل کېږي. یوه لار ئې

دا ده چې بډاى هيوادو ته د بين المللي وجهي صندوق IMF په شان په بين الدولتي سازمانو کې د ډيرو رايو حق ورکول کېږي، چې په دې توګه پرمختللي هيواونه کولاى سي د نړۍ اقتصاد په خپله ګټه وڅرخوي. بله لار ئې بيا دا ده چې پرمختللي هيوادونه د وروسته پاتو هيوادو نخبه ګانو elite ته د فساد او شخصي ثروت د راغونډولو زمينه برابروي، چې دوى بيا په مقابل کې خپل هيوادونه د پرمختللوهيوادو په ګټه اداره کوي. د نخبه ګانو د سرغړوني په صورت کې، د نظامي قوې له لاري هغوي له پښو غورځوي او پر ځاى ئې پرمختللي هيوادو ته وفاداره کسان پر قدرت کښېنوي.

د نړيوال سيستم تيوري World systems theory د اوسني نړيوال اقتصادي عدم مساوات څرک د لوېديځ په سياسي او اقتصادي تسلط، په تېره بيا د ۱۷۰۰ کلونو په نيمايي کې د لوېديځ له خوا پيل سوي صنعتي انقلاب، کې پلټي. د دې تيورۍ پلويان په دې عقيده دي چې د کپيټاليستي سيستم تکامل د پرمختللو او لږ پرمختللو هيوادو تر منځ پراخ اقتصادي، اجتماعي او سياسي ناانډولي رامنځته کړې ده. دوى د لوېديځ په مسلط کپيټاليستي اقتصادي نظام کې د جدي تغيراتو پلوي کوي. خو د مارکسيزم برخلاف، د نړيوال سيستم د تيورۍ پلويان د کپيټاليستي نظام له منځه تلل نه غواړي. د دوى په عقيده، داسي جدي ريفورمونه بايد رامنځته سي چې استثماري کپيټاليزم د همکارۍ په داسې کپيټاليزم تبديل سي چې په هغه کې د ټولو خلکو لپاره د حداقل اجتماعي او اقتصادي هوسايني شرايط برابر سي.

تيوريکي اساس چې به ئې هر څه وي، اقتصادي افراطيون استدلال کوي، چې د دوهمي عمومي جګړې راهيسي د فارس د خليج په سيمه کې د امريکې د متحده ايالاتو رول په نيوامپرياليزم کې خلاصه کېږي. د اقتصادي جوړښت د عقيدې د پلويانو په عقيده، د امريکې متحده ايالات

هڅه کوي چې د سعودي عربستان او کویټ په شان تېل لرونکو هیوادونو تر حد زیات ثروتمند او غیرډیموکراټیک رهبران وساتي؛ لکه په کال ۱۹۹۱ کي چې د کویټ هیواد مرستي ته ورودانګل. د دې په بدل کي، د سعودي عربستان پاچا او د کویټ امیر د تېلو بیه کښته ساتي، چې دا کار د امریکې متحده ایالاتو او همدارنګه د تیلو د نورو واردوونکو هیوادو اقتصاد ته ګټه رسوي. په کال ۱۹۹۰ کي د یو بېلر (چې ۴۲ ګېلنه کېږي) اومو تېلو بیه ۲۰ ډالره وه چې د فارس د خلیج تر جګړې وروسته تر ۱۹۹۹ کلونو پوري د یوه ګېلن بیه ۱۷ ډالرو ته راکښته سوه چې د امریکې او نورو تېل واردوونکو هیوادو ته ئې ډېره اقتصادي ګټه ورسوله. کله چې د ۲۰۰۰ کال څخه د تېلو بیه مخ پر لوړېدو سوه، د اقتصادي افراط د تیوري پلویان شکمن دي چې په ۲۰۰۳ کال پر عراق باندی د امریکې د متحده ایالاتو د حملې، لږ تر لږه یو علت، د تېلو د بیې راکښته کول وو.

## نړیوال اقتصاد: ګلوبلایزېشن او متقابل تړاو:

تر سیاسي سرحداتو په ها خوا د اقتصادي راکړې ورکړې تاریخ ډېر لرغونی دئ. د تجارت تاریخچه تر میلاد ۳۰۰۰ کاله پخوا ته رسېږي، او لرغون پوهانو archaeologists داسي شواهد موندلي دي چې د تجارت سابقه تر میلاد د۸۰۰۰–۹۰۰۰ کلونوته رسوي. له هماغه وخت راهیسي، د اقتصاد علم د بین المللي روابطو ډېر مهم اړخ تشکیلوي. د نړیوال تجارت پراختیا او په نتیجه کي ئې د بین المللي اقتصاد او داخلي اقتصاد تر منځ زیاتېدونکي روابط په بین المللي روابطو کي د اقتصاد د علم د اهمیت ښکارندوی دئ. موږ به دلته پر تجارت، بین المللي سرمایه ګذاري او پولي تبادلې باندي ورغږېږو.

## تجارت:

د مالونو او خدماتو جریان د ټولو دولتو لپاره حیاتي اهمیت لري. د مالونو تجارت زیات وخت د وارداتو او صادراتو سره تړلی وی. تجارتي مالونه محسوس اقلام دي چې پر دوو عمده کټه ګوریو وېشل کېږي: اولیه مالونه (اومه مواد) او تولید سوي مالونه (پاخه مواد). د خدماتو تجارت، چې چندان شهرت نه لری هم ډېر مهم دئ. خدمات هغه شیان په بر کي نیسي چې تاسي ئې د بل چا لپاره کوئ. کله چې د امریکې د متحده ایالاتو د بیمې کمپنیاني تر امریکې دباندي د ملکیتونو او خلګو د بیمه کولو له لاري پیسې ګټي، او یا کله چې امریکایي فلمونه په خارجي هیوادونو کي د حق الامتیاز پیسې لاسته راوړي، دا کار خدماتي صادرات بلل کېږي. دې خبري ته هم باید پام وسي چې خدماتي صادرات حتمي نه ده چې په خارجي هیوادو کي سر ته ورسېږي؛ امریکایي کالجونه او پوهنتونونه، د مثال په توګه، د دې هیواد د صادراتي خدماتو یو غټ قلم تشکیلوي. په کال ۲۰۰۶ کي، ۵۹۱۰۵۰ خارجي محصلینو په امریکا کي په تحصیل بوخت وه چې ۱۴ بلیونه ډالره ئې پر تدریسي فیس، د اوسېدني د ځای پر کرایه، کتابونو، او په تحصیل پوری نور اړونده شیانو مصرف کړي دي.

## د تجارت پراختیا:

د مالونو او هم د خدماتو تجارت ورځ په ورځ پراختیا مومي. په ۱۹۰۰ کي د امریکې د متحده ایالاتو په اقتصاد کي د تجارت ونډه څه زیات ۲ بلیونه ډالره وه، مګر په ۲۰۰۷ کال کي ئې څه زیات ۳ ټریلیونه ډالرو ته پراختیا موندله. په نورو صنعتي هیوادو کي هم تجارت په مشابه ډول

پراخ سوی دئ. حتی که پولي تورم inflation هم په نظر کي ونیسو، نړیوال تجارت بېساري پراختیا موندلې ده. تجارت په خاصه توګه تر دوهمي عمومي جګړې راوروسته، چي په ګمرکي تعرفاتو کي زیات کموالی رامنځته سو، ډېره پراختیا وموندله.

## د تجارت د پراختیا عوامل (فکتورونه):

د عرضې او تقاضا یو شمېر فکتورونو د تجارت زیاتوالی تسریع کړی دئ. د تولیدي تکنالوجۍ انکشاف د مالونو د عرضې د زیاتوالي یو فکتور دئ. صنعتي انقلاب، چي په ۱۸ پېړۍ کي په اروپا کي پیل سو، د پراخ تولید له پاره زمینه برابره کړه. د تولید د سرعت د زیاتېدلو سره، تولیدونکي مجبور وه چي د خپلو تولیداتو لپاره نوي او تر ملي سرحدونو په هاخوا بازارونه ولټوي. دې کار، په خپل وار سره، د نوو منابعو اړتیا رامنځته کړه څو د تولیدي فابریکو له پاره اومه مواد برابر سي. د اروپایي صنعتي هیوادو له خواد اومو موادو د واردولو تجارت په نونسمه پېړۍ کي اوج ته ورسېدی.

د آزاد تجارت فلسفې هم د تجارت د پراختیا سره مرسته وکړه. د۱۹۳۰ کلونو د اقتصادي رکود او د ۱۹۴۰کلونو په اوایلو کی د دوهمي عمومي جګړې په دوران کي د ادم سمیت د آزاد تجارت د نظریاتو ملاتړ ډېر رواج سو. داسي فکر کېدی چي د دې ټولو بدمرغیو یو علت لوړ ګمرکي تعرفات وه چي تجارت ئې محدود کړی او ملتونه ئې سره وېشلي وه. د داسي حالت د تکرار څخه د مخنیوي له پاره، د امریکې متحده ایالات په بین المللي تجارت کي د موانعو د له منځه وړلو رهبري پر غاړه واخیستله. په امریکا کي پر وارداتو ګمرکي محصول چي په کال ۱۹۳۴ کي په اوسط ډول په سلو کي ۶۰ وو، اوس په سلو کي ۴ ته راکښته سوی

دئ. په نورو پرمختللو هیوادو کي هم ګمرکي تعرفات راټیټ سوي دي، مګر په لږ پرمختللو هیوادو کي ګمرکي تعرفات لوړي خوا ته میلان لري. د نړیوالو ګمرکي تعرفاتو اوسط اوس په سلو کي ۱۵ ته رسېږي.

## بین المللي سرمایه ګذاري:

د بین المللي سرمایه ګذارۍ پراختیا هم د هیوادونو په متقابل تړاو interdependence کي زیات رول لوبولی دئ. د مثال په توګه، په کال ۲۰۰۷ کي د امریکایانو مستقیمه سرمایه ګذاري په دباندنیو هیوادو کي ۲,۸ تریلیونه ډالره وه، چي نه یوازي د انفرادي امریکایانو بلکي د ټولي امریکا اقتصاد ئې د نوري نړۍ په اقتصاد پوري تړلی دئ. له بلي خوا، د امریکې په متحده ایالاتو کي د خارجیانومستقیمه سرمایه ګذاري هم څه د پاسه ۲ تریلیونو ډالرو ته رسېدلې وه چي د امریکې او نوري نړۍ د تړاو مهم فکتور تشکیلوي.

کله چي امریکایان په برتانیه او یا نایجریا کي سرمایه ګذاري وکړي، او یا کله چي کاناډایان د امریکې په متحده ایالاتو کي سرمایه ګذاري وکړي، نو یو لړ مالي تړاوونه رامنځته کېږي. دوه ډوله خارجي سرمایه ګذاري وجود لري: یوه مستقیمه خارجي سرمایه ګذاري ده چي په خارجي شرکتو کي د یوې برخي رانیول او یا هم په خارجي هیواد کي د جایداد رانیول په بر کي نیسي. بل ډول ئې بیا خارجي سهامي سرمایه ګذاري ده [یعني چي یو څوک د یوه خارجي هیواد په سهامي شرکتوتو کي اسهام رانیسي]. انفرادي امریکایانو او امریکایي شرکتونو په کال ۲۰۰۵ کي ۲,۱ تریلیونه مستقیمه سرمایه ګذاري او۴ تریلیونه سهامي سرمایه ګذاري په خارجي هیوادونو کي کړې وه.

## بین المللي سرمایه ګذاري او څو ملتی شرکتونه:

څو ملتي شرکتونه په نړۍ کي د مستقیمي خارجي سرمایه ګذارۍ لویه برخه تشکیلوي. څو ملتي شرکتونه هغه بزنسونه دي چي په څو هیوادونو کي فعالیت کوي. دا فعالیتونه د تجارتي مالونو خرڅلاو، د معدنیاتو او طبیعي منابعو استخراج، تولیدي فابریکې، بانکي خدمات او داسی نور په بر کي نیسي. د څو ملتي شرکتو تاریخ د ۱۶۰۲ کال و هالینډۍ شرق الهند کمپنی ته رسېږي، مګر تر دوهمي عمومي جګړې وروسته ئې په شمېر او پراخوالي کي زیات او چټک پرمختګ منځته راغی. اوس په نړۍ کی تر ۶۰۰۰۰ زیات څو ملتي شرکتونه وجود لري. یوازی د لومړني مقام ۵۰۰ شرکتونو مجموعي ناخالص شرکتي تولید gross corporate product په کال ۲۰۰۵ کي ۱۸٫۹ تریلیونه ډالره وو. اکسان موبیل ExxonMobil د نړۍ تر ټولو لوی شرکت وو چي په کال ۲۰۰۵ کي ئې ۳۷۷ بلیونه ډالره عاید درلودی. د دې شرکت ناخالص شرکتي تولید په نړۍ کي د ډېرو هیوادو تر ناخالص ملي تولید gross national product زیات دئ.

## پولي روابط:

د تجارت او سرمایه ګذارۍ جهاني کېدل دا معنی لري چي پولي روابط په بین المللي او هم په داخلي اقتصاد کي ډېر عمده فکتور تشکیلوي. د یوه کال په جریان کي په نړۍ کي ۷۰۰ تریلیونه ډالره په دوران کي وي. د دې پولي دوران ډېره برخه د هیوادونو تر منځ د اسعارو تبادله په بر کي نیسي، چي د تبادلې د نرخ exchange rate زیاتېدونکي اهمیت ښیي. د تبادلې نرخ د یوه هیواد په وړاندي د بل هیواد د اسعارو ارزښت دئ – د مثال په توګه، یو امریکایي ډالر څو جاپاني ینه او یا څو

یورو ارزښت لري. د تبادلې نرخ ډېر مهم ځکه دئ چي د تجارت او سرمایه ګذارئ پر جریان ډېر اثر لري.

کمزورې او قوي پیسه (currency) د ښه او بد سره مساوي نه ده، ځکه چي د تبادلې نرخ د دوه څوکي توري په شان دئ. د مثال په توګه، قوي ډالر د امریکایانو لپاره دا ګټه لري چي ډېر خارجي اسعار په رانیولای سي، او کمزوری ډالر بیا دا تاوان لري چي لږ خارجي اسعار په رانیولای سی. د امریکا لپاره د قوي او کمزوري ډالر ګټې او تاوانونه په لاندي ډول دي:

د امریکایانو له پاره د قوي ډالر ګټې:

- د خارجي مالونواو خدماتو ټیټه بیه.
- د خارجي مالونو او خدماتو ټیټه بیه د پولي بحران inflation مخنیوی کوي.
- خارجي هیوادونو ته سفر کول ارزانه وي.
- خارجي اسهام ارزانه وي.

## د امریکایانو له پاره د قوي ډالر تاوانونه:

- د امریکې صادرات خارجي بازارونو ته ګران وي.
- امریکائې شرکتونه مجبورېږي چي د ارزان بیو وارداتو سره رقابت وکړي.
- د خارجیانو له پاره په امریکا کي تحصیل او امریکې ته مسافرت ګران وي.
- امریکایي اسهام په خارج کي ګران وي چي امریکې ته د سرمائې جریان محدودېږي.

## د امریکایانو له پاره د کمزوري ډالر ګټې:

- د امریکایي شرکتونو لپاره اسانه ده چي خپل مالونه او خدمات په خارج کي خرڅ کړي.

- د خارجیانو له پاره امریکې ته سیاحت کول ارزانه وي.
- خارجي سرمایه ګذارانو لپاره په امریکا کي سرمایه ګذاري کول په زړه پوري وي.

## د امریکایانو له پاره د کمزوري ډالر تاوانونه:

- د خارجي مالونو او خدماتو بیه لوړه وي.
- و خارجي هیوادونو ته مسافرت او سیاحت ګران وي.
- په خارج کي سرمایه ګذاري کول ګرانه وي.

د پیسو د ګلوبلایزېشن سره متناسب د مالي خدماتو ګلوبلایزېشن، لکه د بانکدارۍ سیستم هم په موازي توګه منځته راغی. په دې وروستیو لسیزو کي، بانکونو د محلي ځخه ملي او څو ملتي موسساتو ته انکشاف کړی دئ چي په زیاتو هیوادو کي په فعالیت بوخت دي. د دې بانکونو د پور ورکولو – او یا پور نه ورکولو– قدرت دوی ته ډېر زیات برلاسی ورکړی دئ. په کال ۲۰۰۶ کی تر ټولو لویو لسو څو ملتي multinational بانکونو ۱۵ تریلیونه ډالره سرمایه په کنټرول کي درلوده چي په نړیوال اقتصاد کي ئې دوی ته بېساری قدرت ځکه ور په برخه کړی وو چي پر پورونو، سرمایه ګذاریو او نورو مالي معاملاتو باندي ئې زیات اثر درلودی. د مثال په توګه، په کال ۲۰۰۶ کال کي څو ملتي بانکونو د ۲۵,۶ تریلیونو ډالرو په اندازه خارجي پورونه، خارجي اسعار او نوري خارجي دارایۍ په واک کي درلودې. امریکایي بانکونو په یوازی سر ۵,۸ تریلیونه ډالره دا ډول دارایي درلوده.

د پولي روابطو بل اړخ د پیسو لپاره بین المللي تنظیم دئ. د شلمي پېړي په دوران کي د تجارت او نورو بین المللي اقتصادي روابطو د زیاتېدو سره دا ضرورت منځته راغی چي د اسعارو پراخه او بین المللي تبادله په یو تنظیم راکښې ایستل سي. تر ټولو عاجل مشکل دا وو، او تر

اوسه هم دئ، چي د اسعارو د ارزښت ثبات څرنګه منځته راوړل سي. د دې لپاره چي د اقتصادي فعالیتونو په لار کي خنډ پېښ نه سي، د اسعارو د تبادلوي ارزښت د ثبات له پاره نړیوال او سیمه ییز کوښښونه سوي دي. په نړیواله سطحه کي، د پولي ثبات له پاره د هڅي کولو عمده مسئولیت د بین المللي وجهي صندوقInternational Monetary Fund (IMF) پر غاړه دئ. په سیمه ییزه سطحه کي، تر ټولو پرمختللي هڅي اروپایي اتحادیې European Union د اروپایي مرکزي بانک European Central Bank له لاري سر ته رسولي دي، چي اوس مشترکه پیسه، یورو هم لري.

## عملي اقتصادي نېشنلیزم

### Applied Economic Nationalism

اقتصادي نېشنلیزم یوازي یوه تیوري نه ده. اقتصادي نېشنلیزم د نړۍ د مستقلو دولتونو د اقتصادي او سیاسي پالیسي ګانو په ټاکلو کي ډېر قوي رول لوبوي. اقتصادي نېشنلستان په دې عقیده دي چي د یوه دولت سیاسي، نظامي او اقتصادي قدرتونه یو له بله نه بېلېدونکي دي. دوی په بین المللي سیاسي اقتصاد کي پر درو لارو د مداخلې پیروي کوي. لومړی، د سیاسي اهدافو د لاسته راوړلو لپاره د یو هیواد د اقتصادي قدرت په کار اچول دي. دوهم، د یوه هیواد په بین المللي اقتصادي پالیسي کي داسي مهارتونه وکارول سي چي په نتیجه کي ئې ملي اقتصاد تقویه سي. دریم، د هیواد نظامي قدرت او نور غیر نظامي منابع د اقتصادي اهدافو د په لاس راوړلو له پاره په کار واچول سي. په دې فصل کي به پر دوهمه او دریمه لار وړ.غېږو.

## د اقتصادي اهدافو د لاسته راوړلو له پاره د اقتصادي وسايلو څخه کار اخيستل:

ګلوبلايزېشن د ټولو هيوادونو اقتصاد يو له بله سره نښلوي، او داسي استدلال کېږي چي د هر يوه هيواد د بريالیتوب چانس هغه وخت زياتېږي چي ټول هيوادونه سالم اقتصاد ولري. مګر خبره دا ده چي ټول هيوادونه اقتصادي پاليسي ګاني اوس هم تر هر څه مخکي د خپل ځان د نېکمرغۍ په ګټه پر مخ بيايي، او د نړۍ نېکمرغي و دوی ته دوهمه درجه اهميت لري. د خپلو ځاني ګټو د لاسته راوړلو لپاره ټول دولتونه تر يوې اندازې د داخلي توليداتو د حمائې protectionism د پاليسۍ څخه کار اخلي. د خپل ځان په ګټه په تجارت، سرمايه ګذارۍ او نورو اقتصادي مبادلاتو کي لاس وهنه هغه وسايل دي چي کار ځني اخستل کېږي. هيوادونه د وارداتو او خارجي سرمايه ګذارۍ د محدودولو لپاره بېلابېل ممانعتونه منځته راوړي. ګمرکي تعرفات (تعرفې)، غيرګمرکي تعرفات، د پولي مهارتو څخه کار اخيستل او په سرمايه ګذاريو کي محدوديتونه د دې ممانعتونو ځيني مثالونه دي.

## د ګمرکي تعرفاتو ممانعتونه:

د داخلي توليداتو د حمائې ډېر شناخته شکل دا دئ چي پر تجارت او سرمايه ګذاري باندي محدوديتونه ولګول سي. ګمرکي تعرفات يعني هيواد ته د خارجي مالونو پر وارداتو باندي ماليات وضع کول ډېر عموميت لري. ګمرکي تعرفات اوس د پخوا په شان زيات نه دي خو په پر مختللو هيوادو کي ګمرکي تعرفات د مخ پر انکشافو هيوادو په تناسب لږ وي. د مثال په توګه، د امريکې په متحده ايالاتو کي ګمرکي تعرفات په اوسط ډول ۴٪ دي، په داسی حال کي چي ګمرکي تعرفات په چين کي ۱۰٪ په

برازيل کي ۳۱٪ او په هندوستان کي ۵۰٪ دي.

## غیرګمرکي ممانعتونه:

د غیرګمرکي ممانعتونو يو شکل سهميه quota ده چي د وارداتو شمېر په محدودېږي. اروپايي اتحادئې د چين د نساجي مالونو لپاره سهميه ټاکلې وه چي تر ۲۰۰۸ کال پوري ئې د اروپايي اتحاديې د وارداتو کلنۍ وده په سلو کي ۱۰ محدوده کړې وه. د امريکې متحده ايالاتو د بورې پر وارداتو باندي سهميه لګولې ده.

## پولي ممانعتونه:

د داخلي محصولاتو د تقويې او حفاظت بل شکل د پيسو د تبادلې په نرخ کي د لاس وهني له لاري د صادراتو تقويه او د وارداتو محدوديت دئ. دا کار په داسي توګه سر ته رسېږي چي خپله پيسه د نورو پيسو په مقابل کې په مصنوعي توګه کښته ساتل کېږي. د امريکې متحده ايالات دا تور لګوي (او چين ئې نه مني) چي چين ديوانyuan ارزښت د امريکې د ډالر په مقابل کي په مصنوعي توګه کښته ساتلی دئ. د ۲۰۰۵ کال تر نيمايي پوري چين وکولای سوای د يوه ډالر ارزښت ۸,۳ يوانه وساتي، مګر د تر ۲۰۰۸ کال پوري د ډالر ارښت نور هم (د يوه ډالر په مقابل کي ۶,۸يوانه) راکښته سو. د اسعارو د تبادلې په ارزښت کي د دا ډول لاس وهني يوه نتيجه دا ده چي د امريکې متحده ايالات د چين څخه زيات محصولات وارد کړي او د چين په مقابل کي د امريکې د متحده ايالاتو تجارتي کسر زيات سي.

## د سرمایه ګذارۍ ممانعتونه:

ډېر هیوادونه غواړي چې بین المللي سرمایه ګذاري راجلب کړي ځکه چې دا کار و ملي اقتصاد ته خارجي سرمایه راوړي. سربېره پر دې هم هیوادونه د خارجیانو له خوا د خپل اقتصاد د کنټرول څخه په تشویش کي وي. د سرمایه ګذارۍ ممانعت ډېر عام شکل دا دئ چې د خارجیانو له خو د داخلي شرکتونو ملکیت محدود کړي. ټول هیوادونه دا ډول محدودیتونه لري. د مثال په توګه، په اروپایي اتحادیه، کاناډا او د امریکې په متحده ایالتو کي خارجیان نه سي کولای د هوایي چلند شرکتونه کنټرول کړي.

## د ملتپالي اقتصادي پالیسۍ راتلونکې:

جهاني اقتصاد په تېره نیمه پېړۍ کي په عمده توګه دوه مشخصات درلودلي دي. لومړۍ مشخصه ئې پر نورو اقتصادي سیسټمونو، په تېره بیا مارکسیزم او شوشیالیزم، باندي د کاپیټالزم یعني سرمایه دارۍ د اقتصادي سیسټم مکمل بریالیتوب وو. حتی د هغو څلورو هیوادو څخه چي په رسمي توګه کمونستي پاته دي دوو هیوادو (چین او ویټنام) تر ډېره حده کاپیټالیزم ته مخ کړی دئ، یوازي کیوبا او شمالي کوریا تر اوسه هم د مارکسستي موډل پېروي کوي.

بله مشخصه ئې د اقتصاد زیاتېدونکې متقابله وابستګي interdependence ده چي پر آزاد تجارت، آزادي سرمایه ګذاري او نورو مالي فعالیتونو باندي ولاړه ده. احصائیې ښیي چي په مالونو، خدماتو، سرمایه ګذاریو او اسعارو پوري اړوند حرکتونه او فعالیتونه ډېر زیات سوي او تر ملي سرحداتو وراوښتي دي. پر دې سربېره، لکه چي په راتلونکي فصل کي به ئې ولولو، بین المللي سیسټم اروپایي اتحادیه EU،

بین المللي وجهي صندوق IMF، جهاني بانک او زیات شمېر نور نړیوال او سیمه ییز سازمانونه رامنځته کړي دي چي د بین المللي اقتصادي تبادلې په برخه کي ئې زیاتي اسانتیاوي منځته راوړي دی.

پر دې ټولو شواهدو سربېره، دا به درسته نه وي چي موږ داسي نتیجه ګیري وکړو چي ګواکي نړۍ په حتمي توګه د اقتصادي توحید integration او همکارۍ پر لار روانه ده او اقتصادي نېشنلیزم له منځه تلونکی دئ. اقتصادي نېشنلیزم بې له شکه کمزوری سوی دئ، مګر تر اوسه هم د بین المللي سیاسي اقتصاد د مسلط روش په توګه پاته دئ. د اقتصادي نېشنلیزم د ټینګکار او پایدارۍ تر ټولو مهم علت دا دئ چي اوس هم په بین المللي سیسټم کي مستقل دولتونه مسلط رول لري او نېشنلیزم اوس هم د سیاسي هویت په توګه په ډېر قوت سره پاته دئ. یو مثال ئې دا دئ چي په کال ۲۰۰۵ کي فرانسې او هم هالنډ د اروپایي اتحادیې نوی اساسي قانون رد کړ. دا کار په خپله د بین المللي وحدت او همکارۍ سره د ملت پالو مخالفت ښیي. د داخلي صنایعو د حمایې احساسات یوازي په اروپا کي نه بلکي د امریکې په متحده ایالاتو کي هم په قوت سره پاته دي.

په غیرمستقیم ډول، د ګلوبالیزېشن په هکله د بدګومانیو منځته راتلو هم د اقتصادي نېشنلیزم په تقویه کي رول لوبولی دئ. په پرمختللو او بډایو هیوادو کي خلګ په دې فکر دي چي د دوی نېکمرغي او رفاه ځکه تر تهدید لاندي ده چي تولیدي کارونه د دوی له هیواد څخه و هغو هیوادو ته لېږدول کېږي چي هلته د کار قوه ارزانه ده [یعني خلګ په لږو پیسو کار کوي]. او له بلي خوا، له وروسته پاته هیوادو څخه راغلي ارزان بیه مهاجرین د دوی کارونه ځني اخلي. لږ پرمختللي او غریب هیوادونه بیا ګلوبالیزېشن یوه داسي پروسه ګڼي چي په هغه کي پرمختللي او بډای هیوادونه نور هم بډای سوی اولږ پرمختللي او غریب هیوادونه نور هم پسي

غریب سوی دي. یو تحلیلګر د نن ورځې د ګلوبالیزېشن په هکله وایي:
"موږ د دې آیډیا سره عادت نیولی دئ چې ګلوبالیزیشن په خامخا بریالی کېږي، مګر نور زه په دې خبره باور نه لرم".

# يوولسم فصل

## بين المللي اقتصاد

## International Economics

د اقتصادي نيشنليزم ارزښتونه د دولتونو پر بين المللي اقتصادي پاليسۍ باندي مسلط دي، مګر اعتراضونه ئې هم په وړاندي موجود دي. اقتصادي ملتپالونکي economic internationalists په دې عقيده دي چي که هيوادونه په اقتصادي لحاظ همکاري سره وکړي جهاني اقتصاد به ډېر ښه سي. په دې فصل کي به د پراخي بين المللي همکارۍ لاره تر څيړني لاندي ونيول سی.

### د اقتصادي همکارۍ سرچينه:

د جهاني متقابل تړاو interdependence د منځه راتلو مفکوره، چي پر آزاد اقتصاد او همکارۍ باندي تکيه ولري، د څو سوو کلونو راهيسي وجود درلود. مګر حرکت ئې ډېر پڅ وو او په پراخه توګه بين المللي اقتصادي روابطو تر ۱۹۳۰ او۱۹۴۰ کلونو پوري لا شکل نه وو نيولي. دوو نړيوالو جګړو او د ۱۹۳۰ کلونو د ستر بحران Great Depression په وخت کي د اقتصادي بېنظميو منځته راتلو د نړۍ مشران دې ته وهڅول چي د هغه وخت د پاليسيو په هکله دوباره فکر [تجديد نظر] وکړي. دوی پر دې نظر سره موافق وه چي بې بندوباره اقتصادي نېشنليزم د نړۍ د دې

فاجعو [دوې نړيوالي جګړې او ستر اقتصادي بحران] په منځته راتللو کي رول ولوباوه. په آينده کي د دې ډول مصيبت د مخنيوي له پاره، د امريکا متحده ايالاتو نور پرمختللي هيوادونه د محور [د دوهمي عمومي جګړې په وخت کي د المان، ايټاليې او جاپان اتحاد محور بلل کېدی] پر ضد اتحاد او په وروسته کي ئې د لوېديځي نړۍ هيوادونه د کمونيزم پر ضد اتحاد ته وهڅول. د دې کار څخه ئې هدف دا وو چي په نړۍ کي د يوه نوي اقتصادي نظم تهداب کښېږدي. د ۱۹۴۳ څخه بيا تر ۱۹۴۸ کلونو پوري، د اقتصادي ثبات او د هيوادونو تر منځ د تجارت او سرمائې د آزاد جريان په منظور، پر مختللو هيوادونو (EDC) يو شمېر جهاني او سيمه ييز بين الحکومتي سازمانونه منځته راوړل. د دې بين الحکومتي سازمانونو په ډله کي نړيوال بانک، بين المللي وجهي صندوق (IMF) او د نړۍ د تجارت سازمان World Trade Organization ئې عمده دي. د ملګرو ملتو مؤسسه، چي اوس يو شمېر اقتصادي ايجنسي ګاني لري، هم په همدې وخت کي منځته راغله.

تر دوهمي عمومي جګړي وروسته سمدستي د لومړي ځل له پاره د خارجي مرستو عمده پروګرامونه پيل سول. د امريکا متحده ايالاتو د اروپا د اعاده کولو پروګرام European Recovery Program (چي د مارشال د پلان په نوم شهرت لري) پيل کړ. د دې پروګرام له مخي، د ۱۹۴۸او ۱۹۵۱ کلونو تر منځ، د امريکا متحده ايالاتو د لوېديځي اروپا هيوادونو ته ۱۳ بليونه ډالره (چي په اوسني وخت کي د ۱۰۰ بليونه ډالرو سره برابر دي) ورکړل. يقين دئ چي په امريکا کي د اروپا د ستونزمن حالت سره يوه اندازه بشردوستانه اندېښنه موجوده وه، مګر د امريکا د متحده ايالاتو اصلي انګېزه سياسي ځاني ګټه (چي لوېديځه اروپا د کمونيزم په مقابل کي تقويه کړي) او همدارنګه اقتصادي

ځاني ګټه وه (چي خپل عمده تجارتي شريکان بيرته راژوندي کړي چي دوی د امريکا د متحده ايالاتو د صادراتي مالونو د رانيولو توان پيداکړي.)

## تجارتي همکاري او پرمختيا: د نړيوال تجارت سازمان:

په داسي حال کي چي ملګري ملتونه په پراخ ډول د جهاني اقتصادي مسايلو سره سروکار لري، يو شمېر بين الحکومتي سازمانونه بيا د اقتصادي راکړه ورکړي د مشخصو اړخونو سره سروکار لري. په دې لړ کي يو مهم سازمان د نړيوال تجارت سازمان World Trade Organization (WTO) دئ. دا سازمان په کال ۱۹۴۷ کي تأسيس سو چي تر کال ۱۹۹۵ پوری د تعرفاتو او تجارت عمومي معاهدې General Agreement on Tariffs and Trade (GATT) په نوم يادېدی. په لومړي سر کي ئې د غړو شمېر ۲۳ هيوادو ته رسېدی چي اوس ئې ۱۵۳ هيوادونه غړيتوب لري.

د نړيوال تجارت د سازمان (WTO) وظيفه دا ده چي د غړو هيوادو تر منځ تجارتي مناقشې د تعرفاتو او تجارت د عمومي معاهدې له مخي حل کړي. د WTO د سازمان مرکزي دفتر د سويتزرلينډ د جينيوا په ښار کي موقعيت لري. هيوادونه کولای سي دې سازمان ته د GATT څخه د سرغړوني په تړاو يو د بل په مقابل کي شکايت وړاندي کړي. د نړيوال تجارت سازمان (WTO) د قاضيانو د شکايتونو د اورېدلو يو درې کسيز هيأت لري چي پر شکاياتو باندي غور کوي. که هيأت سرغړونه پيدا کړي نو بيا د نړيوال تجارت د سازمان (WTO) کولای سي هغه هيواد ته چي تاوان ورته رسېدلی وی اجازه ورکړي چي پر هغه هيواد چي تاوان ئې

پېښ کړی وی، تعزیرات وضع کړي. د نړیوال تجارت په سازمان WTO کي هر هیواد یوه رایه لري، او پر یوه هیواد باندي د تعزیراتو وضع کول د غړو هیوادو دوه پر درې برخي رایو ته اړتیا لري. هر غړی هیواد، د شپږ میاشتي مخکني خبر ورکولو وروسته، کولای سي د سازمان غړیتوب پرېږدي. که چېري کوم هیواد دا کار وکړي نو به له زیاتو اقتصادي ستونزو سره ځکه مخامخ سی چي تجارتي مالونه به ئې د کښته ګمرکي محصولاتو او نورو هغو امتیازاتو څخه چي د نړیوال تجارت سازمان ئې غړي هیوادو ته وړاندي کوي بې برخي پاته سي.

## بین المللي وجهي صندوق:

د تجارت او نورو بین المللي مالي راکړه ورکړي د زیاتېدو سره دا ضرورت راپیدا سو چي د ډالر، یورو، ین، پونډ او نورو اسعارو د تبادلوي جریان د ثبات له پاره بین المللي همکاري رامنځته سي. د دې اړتیا د پوره کولو له پاره یو شمېر سازمانونه، چي بین المللي وجهي صندوق ئې یو له مهمو سازمانو څخه دئ، منځته راغلل.

د بین المللي وجهي صندوق (IMF) پیدایښت او وده په ۱۹۴۰ کلونو کي راپیل سوه. د امریکا متحده ایالاتو د پولي ثبات او د اسعاري تبادلې له پاره د اسانتیاوو د منځته راتلو اهمیت تشخیص کړ، او د دوهمي عمومي جګړې د متحدینو په ګډون ئي په کال ۱۹۴۴ کي د امریکا د متحده ایالتو د نیوهامپشایر په ایالت کي یو کنفرانس دایر کړ. د دې کنفرانس هیأتونو بین المللي وجهي صندوق (IMF) منځته راووړ. په دې توګه، د نړیوال تجارت د سازمان (WTO) پشان، بین المللي وجهي صندوق (IMF) د امریکا د متحده ایالاتو په مشري، د لوېدیځو هیوادو له خوا په بین المللي اقتصاد کي د آزادۍ liberalization د منځته راوړلو په هدف جوړ سو. د

بین المللي وجهي صندوق (IMF) په کال ۱۹۴۷ کي په کار پیل وکړ چي ۴۴ هیوادونو ئې غړیتوب درلود. په کال ۲۰۰۸ کي ئې د غړو هیوادو شمېر ۱۸۵ ته ورسېدی. عمومي اداري مرکز ئې د امریکا د متحده ایالاتو په پایتخت واشنګټن ډي سي کي موقعیت لري. په لومړي سر کي د بین المللي وجهي صندوق (IMF) د داسي یو سیسټم پېروي کول چي په هغه کي د خارجي اسعارو تبادله د ډالر په مقابل کي په یو ثابت نرخ، چي د سرو زرو د نرخ سره تړلی وو، سر ته رسېدل. مګر په ۱۹۷۰ کلونو کي یو نوی سیسټم رامنځته سو چي په هغه کي د خارجي اسعارو نرخ خپل سر ته پرېښوول سو. په دې سیسټم کي عرضه او تقاضا د خارجي اسعارو د نرخ د ټاکلو عمده مشخصات وګرزېدل.

بین المللي وجهي صندوق (IMF) د خپلو مصارفو له پاره د هغو اسعارو د ذخیرې څخه چي د اقتصادي پلوه پرمختللو هیوادونو د بین المللي وجهي صندوق (IMF) په اختیار کي ورکړي دي استفاده کوي (همدا اوس دا ذخیره اسعار ۳۴۱ بلیونه ډالرو ته رسېږي). بین المللي وجهي صندوق (IMF) دا پیسې نورو هیوادو ته په پور ورکوي او له هغو څخه سود اخلي.

## د نړیوال بانک ګروپ:

نن ورځ تر ټولو مهمه پرمختیایي ایجنسي، چي لږ پرمختللو هیوادونو ته پرمختیائې پورونه او مرستي ورکوي، د نړیوال بانک ګروپ دئ چي یوازي د نړیوال بانک په نوم شهرت لري. د «ګروپ» کلمه ځکه ورسره اضافه سوې ده چي نړیوال بانک د یو شمېر مشخصو ایجنسیو څخه جوړ دئ.

د بین المللي وجهي صندوق (IMF) په شان، نړیوال بانک هم تر دوهمي عمومي جګړې وروسته د امریکا د متحده ایالاتو او د هغه د

متحدينو د اقتصادي رونق له پاره منځته راغی. مګر، د IMF په شان، د نړیوال بانک په اولویتونو کي هم تغیرات راغلل. اوس د نړیوال بانک بېلابېلي ایجنسۍ د لږ پرمختللو هیواد سره پرمختیایي اقتصادي مرستي کوي. تقریباً ټول هیوادونه د نړیوال بانک د ګروپ د هري ایجنسۍ غړیتوب لري.

## د بیا رغوني او پرمختیا بین المللي بانک:

د بیا رغوني او پراختیا بین المللي بانک (IBRD) په کال ۱۹۴۶ کي تأسیس سوی دئ او د پور ورکولو پالیسۍ ئې عادي تجارتي بانکونو ته ورته دي. د بیا رغوني او پرمختیا بین المللي بانک د هغو پروژو د مالي ارزښت تحلیل او څېړنه سر ته رسوي کوم چي بانک ئي تمویلوي او هم یو څه سود باندي اچوي. په کال ۲۰۰۸ کي د بیا رغوني او پرمختیا بین المللي بانک په ۳۴ هیوادو کي د ۹۹ پروژو له پاره د ۱۳,۵ بلیونه ډالرو په اندازه نوي پورونه ورکړي دي. تر ۲۰۰۸ کال پوري د بیا رغوني او پرمختیا بین المللي بانک په مجموعي توګه ۱۳۰ هیوادونو ته ۴۴۶ بلیونه ډالره پور ورکړی دئ. د دې بانک شتمني پر هغه ۱۱۰ بلیونه ډالره ولاړه ده چي غړو هیوادو ورکړي دي، او هم هغه سود او ګټه چي بانک ئې پر هغو پیسواخلي چي په پور ئې هیوادو ته ورکوي د دې بانک دارایي تشکیلوي. چین، برازیل، مکسیکو، هندوستان او ترکیه هغه هیوادونه دي چي د بیا رغوني او پرمختیا د بین المللي بانک څخه ئې زیات پور اخیستی دئ.

## د بین المللي پراختیا ټولنه:

د بین المللي پراختیا ټولنه (IDA) په کال ۱۹۶۰ کي منځته راغلې ده او ډېرو غریبو هیوادو ته بې له ګټې پور ورکوي؛ څو دا ډېر غریب هیوادونه

وکولای سي خپلو خلکو ته اولیه بشري خدمات (لکه تعلیم، روغتیایي خدمات او پاکي د څښلو اوبه) برابر کړي. همدارنګه د دې ډول پورونو هدف دا دئ چي غریب هیوادونه وکولای سي په اقتصادي تولید کي انکشاف راولي او خلکو ته کار پیدا کړي. د بین المللي پراختیا د ټولني ټول پورونه ګټه (سود) نه لري او تر لسو کالو پوري د پور بیرته ادا کول هم نه غواړي. لس کاله وروسته د ۱۵ څخه تر ۳۰ کالو پوري د پور د بیرته ادا کولو پروګرام ورته جوړیږي. په ۲۰۰۸ کال کي، د بین المللي پراختیا ټولني په ۷۲ هیوادو کي د ۱۹۹ پروژو له پاره د ۱۱,۲ بلیونه ډالرو په اندازه پورونه ورکړي دي. د شمېر څخه هم ښکاري چي د پورونو اندازه وړه ده. د منځته راتلو له وخته بیا تر اوسه پوري د بین المللي پراختیا ټولني ۱۹۳ بلیونه ډالره کریډیټ او بلاعوضه مرستي grants کړي دي چي نیمي ئې افریقا ته ورکول سوي دي. د بین المللي پراختیا د ټولني یوه اندازه پیسې د بیا رغوني او پرمختیا د بین المللي بانک څخه ورکول کیږي، مګر زیاته برخه پیسې ئې د غړو هیوادو د مرستو څخه لاسته راځي.

## بین المللي مالي ټولنه:

بین المللي مالي ټولنه (IFC) په کال ۱۹۵۶ کي منځته راغلې ده چي په لږ پرمختللو هیوادو کي شرکتونو ته پور ورکوي او همدارنګه په پرمختیایي پروژو کي د شخصي سرمایه ګذاریو تضمین کوي. دا ټولنه د IDA او IBRD په خلاف، چي د ولسي پروژو د تمویل له پاره حکومتونو ته پور ورکوي، انفرادي شرکتونو ته پور ورکوي. په کال ۲۰۰۸ کي، بین المللي مالي ټولني په ۸۵ هیوادو کي د ۳۷۲ شخصي سرمایه ګذاریو له پاره ۱۱,۴ بلیونه ډالره پورونه ورکړي دي.

پای